## اشغالګرو ولې خپلې ژمنې ماتې کړې ؟؟!

# هرچل

اتم کال، یوولسمه ګڼه، پرلپسې (۷۵) یمه، محرم (۱٤۳۵) هـق، نومبر (۲۰۱٤) زکال







## امضاء قرارداد امنيتي، کابل را بی امن ساخت

## ایډز یرغل راوړې تحفه

## داسلامي تهذیب ځوبیلګې

## د الاقصی پر وړاندې نړیواله لوبه

## شپني عملیات، ولس ته دنوي حکومت لویه ډالۍ

## افغان انګلیس څلورم جنګ او دانګریزانو څلورم سترشکست



# مورچل


اتم کال یوولسمه گڼه، پرلپسې ۷۵ گڼه، محرم ۱۴۳۵ هـق، نومبر ۲۰۱٤ ز

علمي، سیاسي او جهادي میاشتینۍ خپرونه


| گڼه | مطلب | مخ |
|---|---|---|
| ۱ | اشغالگرو ولې خپلې ژمنې ماتې کړې............. | ۱ |
| ۲ | امضاء قرارداد امنیتي کابل را بی امنیت ساخت.... | ۳ |
| ۴ | د معتدل اسلام شعارونه او امریکایي منافع......... | ٦ |
| ۵ | ایډز یرغل راوړې تحفه........................ | ۹ |
| ٦ | دجهاد فقهي مسائل........................... | ۱۲ |
| ۷ | اسلام دتمدن او پرمختګ دین دی................ | ۱۵ |
| ۸ | قرآن طرف ته راشئ!!.......................... | ۱۷ |
| ۹ | د شهادت غوښتنې او فدایي عملیاتو په هکله...... | ۲۲ |
| ۱۰ | د اسلامي تهذیب څو بیلګې...................... | ۲۷ |
| ۱۱ | امت دین وامت سیاست.......................... | ۳۰ |
| ۱۲ | ذبیح الله مجاهد څو شیبې له خپل ولس سره....... | ۳۲ |
| ۱۳ | د الاقصی پر وړاندې نړیواله لوبه................. | ۳۵ |
| ۱۴ | شپني عملیات ولس ته دنوي حکومت ډالۍ....... | ۳۸ |
| ۱۵ | افغان انګلیس څلورم جنګ....................... | ۴۰ |
| ۱٦ | د اسلام غزوات او سرایا........................ | ۴۳ |
| ۱۷ | بر رسی نقش تزکیه در ساختار شخصیت انسان... | ۴۷ |
| ۱۸ | د مورچل دار الافتاء........................... | ۵۱ |
| ۱۹ | جنګي جنایتونه................................. | ۵۵ |
| ۲۰ | اسلام وغرب از دیدګای جدید.................. | ۵۷ |
| ۲۱ | د دعوت ارشاد جلب او جذب کمیسیون...... | ٦۱ |
| ۲۲ | میاشتني خبرونه............................. | ٦۳ |
| ۲۳ | د مورچل وړمې............................... | ۹۱ |


د امتیاز خاوند

دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر

شکـــور (شفق)

کتـــنپلاوی

حــــسن خپــل | ایـــوب صـــافی
حـــــسن زوی | حکمت بغلانی
زبیر مـــسافـر | حافـظ سعـــید

تـخنیکي چارې

دفرهنګي کمیسیون تخنیکي څانګه



مکاتباتي ادرس

پته: کابل ښار، پنځمه حوزه، دمجلې دفتر

E-mail: baakhtaraf@yahoo.com

بسم الله الرحمن الرحیم



# اشغالګرو ولې خپلې ژمنې ماتې کړې؟؟!

نږدې دا ټول کال لوید یځو رسنیو پدې شخوند وواهه، چې دا دی (۲۰۱۴ز) کال دامریکایانو او نورو اشغالګرو د پوځي حضور وروستی کال دی، چې هرڅنګه کیږي، نور امریکایان له هیواده وځي ،او ګوندې نور نه غواړي ،چې یا یې دلته عسکر ووژل شي او یا یې نورې پیسې ضایع شي، ګمارل شویو او ددوئ لخوا تغذیه شویو انانسرانو به ویل، چې که چیرته دهیواد پلورنې په اصطلاح (امنیتي سند) لا سلیک نشي ،نو ټول امریکایان به له هیواده کډې بارکړي او دا دبیارغونې پیل شوي پروژې به ټولې نیمګړې پاتې شي ! ! خو که دا تړون لاسلیک شو، نو دپوځي روزونکیو تر نامه لاندې به (۹۸۰۰) روزنکي عسکر پاتې شي ،نور به ووځي او دافغانستان دچارو واګې به افغانانو ته وسپاري !

خو خبره هغه وخت سپینه شوه ،چې دامریکادفاعي وزیر(چیک هیګل) دې وروستیو کې کابل ته راغی او د شنبه په ورځ دلیندۍ ۱۵مه، ۱۳۹۳ل کال یې په څرګندو ټکویو خبرې غونډې ته کابل کې وویل ،چې امریکا خپل پلان ته تغیر ورکړ او عسکر به یې په (۲۰۱۵ز) کال کې هم دلته پاتې وي او هم یې وویل، چې د(۹۸۰۰) عسکرو پر ځای به (۱۰۸۰۰) عسکر تردې زماني واټن تیرولو وروسته هیواد کې پاتې وي ،دده په قول امریکا پلان لري، چې ۲۰۱۶م کال پورې افغانستان کې د خپلو عسکرو شمېر ۵،۵۰۰ ته را ټیټ کړي او ۲۰۱۷م کال کې به امریکایي عسکر د امریکا په سفارت کې پاتې وي.

سره ددې چې امریکایي چارواکې تل دولس دتېر ایستلو لپاره وایې، چې دغه عسکر به په جګړه ایزو چارو کې برخه نه اخلي، بلکې یوازې به یې دافغان نما وسله والو د روزنې مسؤولیت پر غاړه وي او......او..... خودوخت عبوراو مروردا په اثبات رسولې ،چې دادشغالګرو هسې غولونکې خبرې دي،او اصلاً امریکایان افغانستان ته ددې لپاره راغلي دي ،چې قتل وقتال ،ولس وژنه وکړي او هم دافغانانو اسلامي او افغاني غرور له منځه یوسي؛دپوځي چارو کارپوهان ګرد پدې آند دي،چې شاید دامریکاددې سپیناوي نه

موخه داوي ،چې که چیرته دطالبانو سره په جګړه کې اشغالګر ماتې وخوري،نو ددې بدنامۍ پړه به دکابل په لنډو غرو عسکرو واچوي او دشکست له پیغوره به ځانته نجات ورکړي .

خو اصل پوښتنه داده، چې ولې په دومره نړیواله سطحه له اعلان شوي ژمنې څخه امریکایان په شاشول، او دوعده خلافۍ دبدرنګۍ پړه یې هم په خپلو اوږو بار کړه ؟ښایي ځواب داوي ،چې هیڅکله ښکیلاګر خپلو ژمنو او تعهداتو ته متعهد ندې پاتې شوي ،ولسونه یې تل پداسې غوړو وعدو غولولې، خو بیا یې ورسره خدع او چل کړي ،دخپل استعماري عادت له مخې یې ورسره تعهد مات کړی او خپلې نامشروع منافع یې دیوه قام دوعدو او ګټو څخه معتبرې بللې ،چې ددې مدعی داثبات لپاره ډیری بیلګې شته.

دوئ له افغانانو سره هم ورته معامله وکړه ،کومې وعدې چې یې ورسره دپوځونو دایستلو په ګډون کړي وي ،ترې په شا شول، او په خپله فریبکاره او مکاره تنده یې دعهد شکنۍ یو بل داغ هم وراضافه کړ،او دبیا لپاره یې افغانانو ته دخپل اصل مزخرف هویت خیرنه هینداره وښوده،ترڅو یې په ژمنو څوک نور ځانونه تېر نه باسي !

له تردد او شک پرته په (۲۰۰۱ز) کال کې چې دامریکا په سرداری، نږدې (۴۲)ښکیلاګګرهیوادونه ګران هیوادته اشر(حش)کیدل، داددې لپاره نه اشرکیدل، چې په اسانۍ سره به بیرته ځي او ددې نه مخکې چې خپل شوم اهداف یې نه وي ترلاسه کړي، افغانستان دې ترک او په خیریت سره دې ستانه شي ،بلکې ددوئ ماموریت هاغسې ندی ،څنګه چې یې خلکوته انځوروي ،ځکه ددقیقو معلوماتو له مخې دغرب کلیساګانې دې جګړې ته، یوه مقدسه مذهبي جګړه !!وایې، اودا دوئ داسلام په مقابل کې پیل کړې ده ،افغانان چې من حیث القوم مسلمانان دي ،دا تېر(۱۴) کاله دغرب له ډیر لګښتونو او عسکرو ضایع کیدوو روسته بیاهم دې ته ندي تیار شوي ،چې(خدای ج مکړه)اسلام پریږدي او دمنسوخ عیسویت دین پر پله پل کیږدي ،نو کله به کفري یرغلګر په دومره عجله له هیواده پښې سپکې کړي او دافغانانو په غمجن حالت به ترحم وکړي !

اسلامي امارت چې پرله پسې ددوئ له دسایسو نه نقاب کړی ،خپل مسلمان ولس یې وخت په وخت پدې پوهولی او داسلام او خاورې ددښمنانو څیرې یې ورته ښکاره کړې دي ،دکشالې دیوه غښتلې لورې په شکل تل اشغالګروته ددې پیغام ورکړی ، چې که هرڅومره دیوه طولاني اشغال لپاره لارنقشې جوړې او دجنګ خریطې ترسیم کړئ،افغان مسلمان ولس درته دیوه ډیر اوږده او نه ستړې کیدونکې جهادي مقاومت تابیا نیولې ،ترڅو چې هستئ او ټوپک مو په اوږه وي، افغانان به مو غشو او نیزو ولي او دخپلو سپیڅلو وینو په نذرانو به درنه دا ډګرهم وګټي ،او تاسو ته به ستاسو دپیرنګي او روسي سلف غوندې له عبرته ډک سبق درک کړي !! وذالک علی الله بعزیز



# امضاء قرارداد امنیتی

## کابل را بی امن ساخت

الیاس عاصم

دنیا دار اسباب و وسایل است ، هر فرد ، خانواده ، قریه ، قوم ، قبیله و درکل هر ملت بدون به استفاده گرفتن اسباب ، زندگی خود را در دنیا به پیش بورده نه میتواند.

استفاده از اسباب برای امرار معاش و مرفوع نمودن حوائج ، حق مسلم تمام بشریت است ، ولی اسباب هم در خانه خود به دوسته تقسیم میشوند.

ـ اسباب مشروع

ـ اسباب غیر مشروع

ـ اسباب مشروع عبارتند از اسبابیکه در راه استعمال آن به هیڅ فرد و جهت دیگر عارض جانبی را وارد نکند.

مثلا : ما استفاده از آب ، هوا و غذا میکنیم ، ولی آب باید ملکیت خود ما باشد ، استفاده از هوا باید باعث اذیت دیگران نه گردد ، و غذا را نیز به گونه مجاز به دست اورده باشیم و دراستفاده آن هم به کسی دیگری خطر مواجه نشود.

همچنان درتمام ابعاد زندگی استفاده از وسائل مشروع ، برای بهبود زندگی چه در عرصه انفرادی وچه در عرصه اجتماعی باید مطابق قوانین مشروع صورت گیرد.

ـ اسباب غیر مشروع آن اند که برخلاف اصول و ضوابط فوق مورد استفاده قرار گیرد، سبب اذیت دیگران شود، سبب تنشهای جدی شود، سبب هتک حرمت انسانها گردد، سبب پایمال نمودن قوانین با ارزش اسلامی شود و و و ....

قوانین قابل احترام و مورد پذیرای اجتماعات مسلمانان همانا قوانین شرعی و اصول پایدار دینی میباشند، بدون جواز شریعت در اجتماعات مسلمانها اگر اقدام صورت میگرد، به صراحت باید گفت که غیر قانونی، غیر مجاز و غیر قابل پذیرش است، ولو که زیر هر نام و پوشش دیگر انجام شود.

روی هم رفته امضای پیمان امنیتی با امریکا که مسلماً یک نیرو متکبر، بی اعتناء. مغرور و اهرمنی است، به معنی استفاده سالم از وسائل مشروع نیست بلکه به معنی در هلاکت انداختن جامعه است.

دول های دنیا با همدیگر پیمانهای مختلف را روی مشترکات، منافع مجاز و مشترک به عقد می بندند، ولی سه چیز لاجرم درآن در نظر گرفته میشوند.

ـ بیلانس (موازنه) نیروی نظامی یا بالا دستی هردو پارتنر (شریک) باید تاحد با هم نزدیک باشد، تا با استفاده از ضعف یک جانب، جانب دوم بهره برداری افزاری نه کند.

ـ هردو پارتنر (شرکاء) باید رضایت کامل مردم خود را داشته باشند، تا عقد از لحاظ تاریخی به بدنامی افراد مشخص تمام نشود، مثلا : ما در تاریخ بشریت اکثرا شاهد آن هستیم که نیروهای استعمار گر، کشور های زیر استعمار خود را توسط چند تن دست نشاندهای اجیر به نام عقد پیمانها، تحت سلطه در آورده و از ان استفاده غیر قانونی کرده اند.

پیمان بستن های بعدی اتحاد شوروی سابق با کارمل و سایرین هم ازجمله معاهدات بین استعمار گر و اجیر بود که هیڅ ارزش قانونی نداشت.

الگوی خوبی که اذهان ما افغانها را زودتر روشن میتواند، عقدپیمان میان حکومت سلطنیتی وخت و انگلیس بود که به نام معاهده کندمک یاد میشود، آن پیمان بدون درنظر داشت خواست افغانها، میان اجیر و بادار امضاء شد که تاکنون رنج آن را ملت افغان، درکل ملت پشتون در هردو جانب مرز دیورن میکشد.

ـ در عقد پیمان، منافع هر دو جانب باید بسیار واضح ومشخص شده باشد، عبارات گنگ، محتمل چندین معنی و کلمات مبهم در آن استفاده نشود.

اکنونی امضاء پیمان به نام پیمان امنیتی میان اشرف غنی و امریکا نیز خلاف اصول دینی و افغانی، حتی اصول جهانی صورت گرفته.

ـ در پرتو شریعت هیچ نیروی کفری، خصوصا نیروی نظامی آنها اجازه ندارد، در مملکت اسلامی حضور پیدا کند، چه مانده اینکه عملیات را انجام دهد،زندان داشته باشد، مردم را تحقیر کند، ارزشهای دینی را پامال نماید.

ـ طرز وتفکر اجتماعی افغانها آماده آن نیست که با نیروی اشغالگر و متمرد دنیا همچون پیمان ننگین داشته باشد، تا در مقابل اجرت سالانه، دست دشمن باز و دست افغانها بسته شده باشد.

ـ مردم هرگز رضایت ندارند که افغانها به دست امریکایها کشته شوند، حریم خانه ها شکسته شود، حتی افغانها بعد از کشته شدن حریق شوند، ولی باز هم افغانها صلاحیت و کفایت باز پرس را نداشته باشند، محاکم افغان نتوانند مسئله را برسی کنند و اتباع افغانستان نتوانند داد خواهی نمایند. (البته ادعای محاکمه کردن افراد مجرم در کشور قابض، بدون فریب چیزی بیشتری نیست، قاتلین افغانها در جوامع خود به کشتن افغانها افتخار خواهد نمودند، همچو حادثه فاجه بار که دوسال قبل در زنگاوات ولایت قندهار رخ داد).

ـ درحالیکه یک کتله بزرگ از ملت، با نیروهای اشغالگر در گیر جنگ باشد،مبارزه آزادی خواهی ومشروع را به پیش برد، مردم هرگز رضایت ندارند که تعداد محدود از بیرون آمده ها، اقدام به عقد چنین پیمان ها نمایند.

روی همین تخلفات بزرگ است که مردم افغانستان به خصوص مجاهدین امارت اسلامی افغانستان دست به شدت عملیات ها علیه نیروی اشغالگر و مزدور زده اند، به شمول کابل تمام نقاط مهم را در افغانستان زیر حملات قرار داده اند.

این که کابل با ناامن ترین شهرها در روزهای اخیر مبدل گردیده، گناه پیمان کننده ها و پیمان تحمیل کننده ها است، که بدون در نظر داشت عکس العمل ها یا کم اهمیت شمردن مخالفت ها، دست به امضاء پیمان ننگین زدند، وخیانت تاریخی را مرتکب شدند.

# دمعتدل اسلام شعارونه

# او امریکایي منافع !!

ت ـ عبید تنویر

په دې ورستیو کې ، دسعودي عربستان دهیواد له لوري ، دکابل د(مرنجان تپې ) په سربانديې دیولوی اسلامي ثقافتي مرکزدجوړولو پرانسته وشوه او اټکل یې شوی ، چې په نوموړي مرکزبه شاوخوا ۱۰۰ میلونه ډالرولګیږي.

له ورایه خو ، باید هرمسلمان ددغسې مراکزو چې هم یې نوم اوعنوان اسلامي اومذهبي وي اوهم دیوه اسلامي هیواد لخوا تمولیږي ،جوړښت اوتاسیس ته خوشحاله شي ، بیا دافغانستان په روانوشرایطو کې چې له هرې خوا دکفراوداسلام دغلیمانوله خوا هرډول حربي اوحملې روانې دي ، اوامریکایانوهر ګبروترسا ته ددې زمینه برابره کړې ، چې دافغانانو ددیني اومذهبي عقایدواوفرهنګي اساساتو پرخلاف ، دمدني او بشري ازادیواوحقوقوپه نوم څه یې چې زړه غواړي ، حملې ترسره کړي.

نوطبعا ، به دیوه اسلامي لوی مرکز جوړیدل ، افغانانوته له یوه زیري څخه کم نه وي ، څکه ،دوئ فکرکوي ، چې نوموړی مرکز دسعودي عربستان ، دهیواد په شفقت جوړیږي ، اوسعودي چې دومره لوی مرکز تاسیسوي اوپه میلونو ډالرپرې مصرفوي ، خامخابه یې دافغانانو ددین اوعقیدې غم په زړه کې وي !.

ولې کوم ، تعبیر چې بیا دمرکز دپرانیستونکوله خوا مخې ته راڅي او دکابل دیمکرات درباري مبلغین یې تشریح وړاندې کوي ، هغه بیادمرکز له نوم اوعنوان سره سخت ټکراوضدیت لري.

دکابل اداري دحج اوقافو وزارت چلونکي چې ترډیره بریده پکې دازهر پوهنتون فضلا ښکته پورته کیږي، وایي چې نوموړی مرکز به دیوه معتدل اومیانه روه اسلام دودې ، ترقی اوروزنې ،

زانګوويي او دهغه اسلام دخپريدومخه به نيسي چې خلکو ته د بنسټ پالنی او شدت درس ورکوي.

اوس نه پوهيږو ، چې په افغانستان کې ،دکابل اداري مبلغينو ته هغه کوم څه بنسټ پالنه اوشدت پسندي ښکاري ، چې دمرنجان تپي ، د ثقافتي مرکز په جوړيدو يې دهغو مخه نيول غواړي ؟

افغانان خو هيڅکله شدت پسنده نه وو اونه هم دي ، قاطع اکثريت يې ديوې ديني اومذهبي لارې اومسير پيروان دي ، ټول دحنفي مذهب اومنهج په نجات ببنونکي فقه باندې متمسک دي ، اوحنفي فقه خو دالله تعالی داحکاماتو اونبوي لاربنوونو په هنداره کې لکه لمر روښانه ده چې له اعتدال ، زغم او دانسانيت له مصالحو ډکه او مشفقه غيرلري ، نو بيا کومه اړتيا ده چې ازهر خيل ، افغانان کوم بل معتدل اوميانه روه دين ته رابولي ؟

که ددوئ هدف ، هغه ذهنيت او روحيه ټکول وي ، چې دخارجي يرغل او داسلام ضد صريحو منکراتو په وړاندې يې مجاهد افغانان لري اويادامريکا ، ناټو دګډ کفري تجاوز په مقابل کې دجهاد اومقابلې لپاره دالله تعالی اودهغه درسول صلی الله عليه وسلم په امر خپلې ککرې قربانوي او همدغه فکر اوسوچ دوئ بنسټ پالنه بولي ، نو بيا خو خبره ډيره برالا اوروښانه ده چې دنوموړي مرکز ترشا نورعزايم او يوعالم دسيسي اوکيني پرتي دي.

نوبيا ويلای شو ، چې دمعتدل اوميانه روه اسلام ، دغه مدعيان چې غواړي دکابل اداري ته په همدغو پوچو شعارونو ديني اومذهبي رنګ ورکړي ، خاص هدف يې دادی چې په اول قدم کې اسلامي ارزښتونه ، له غربي ارزښتونوسره نيږدې کړي اوپه دوهم قدم کې غربي ارزښتونه ، داسلامي ارزښتونو په شکل کې خلکوته وړاند ې کړي.

لکه ، اسلامي ديمکراسی ، اسلامي پارلمان، اسلامي بشري حقوق ، اسلامي ديمکراتيک انتخابات او اسلامي ازاد بازار......

همدارنګه به په دغو ميانه روه ، مراکزو کې خامخا دادرس اوذهنيت ويل کيږي ، چې په يو اسلامي هيواد کې دکوم کفري هيواد دقواوو موجوديت ، هيڅ کوم شرعي حرج نلري ، دستراتيژيک تړون لاسليکول ضروري دی ، دجان کيري په لاس دجوړشوي ، وحدت ملي ! دولت په وړاندې مبارزه ، بغاوت شميرل دی ، دښځو اونارينه وو اختلاط کوم جرم ندی ، داسلام

دمقدساتوپه مقابل کې درسنیو اواشخاصو توهین پروانلري !څکه دادلیل به ویل کیږي چې الله تعالی داهرڅه ویني اوساتنه یې هم هغه کوي !!!؟

**وروڼو اوخویندو:**

اسلام ، یوواحد دین دي ، چې خپله یې مسلمانان په تعبیر ښه پوهیږي ، داچې دمعتدل اومیانه روه ، اسلام په نامه اوس کومي ناري اوسوري ویل کیږي ، داټول امریکایي اوغربي دامونه دي چې مسلمانانو ته یې داسلام په جامه کې ایښي دي ، چې خاص هدف یې دواحد اسلام ټوټه کول او داسلام له مقدس دین اومحمدي شریعت سره دپرګنو په واټن او توپیرکې اچول دي.

تاسې فکروکړی ، په افغانستان کې نیږدې ۱۴ کاله کیږي چې امریکا خپل بربریت ته دوام ورکوي ، دری لکه افغانان یې له تیغه تیرکړل ، دوه میلونه تنه یې شکنجه وګرځول ، په نړۍ کې هغه ستر دیني مراکز اوجامعي چې په ټنده یې داسلام بهترین نومونه ټومبلي ، یوه ورځ هم چا ترینه وانه وریدل ، چې امریکایانو په افغانستان کې ظلم اوزیاتی کړی او نوربائید ورته دپای ټکی کیښودل شي ؟

بلکې هماغه دیني جامعي خپل وفدونه رالیږي ، او دامریکاپه مقابل کې دجنګیدونوکې سپاهیانو باندې غږکوي چې له جنګ جګړې دې لاس واخلي او دسولي له لارې دې خپل مشکلات حل کړي.

خلاصه : داچې افغانان د هغه مبارک دین پیروان دي چې داسلام دستر پیغمبر صلی الله علیه وسلم ، مجاهد وصحابه کرامو دلته رارسولی ، چې د هغه خاص نوم ، غیرت ، شهامت اوپه دیني او اسلامي مقدساتو ننګ ، عمل اوداړتیا په وخت کې پرې ، سرښندنه ده اوبس.

څوک چې اوس افغانان داعتدال اومیانه روی په نومونو ، تیرایستل او په پردیو لومو کې نښلول غواړي ، فکرکوو چې هسي به خپل میلونډالر په سیند لاهو کړي او خپل وخت به ضایع کړي ، دغه ولس او دغه خاوره دپردیپالو نظریو دترویج ، نه حوصله لري او نه دعملي کولو امکان پکې شته.



حبيب مجاهد

# ایډز
# یرغل راوړې تحفه

د ۲۰۰۰ م کال وروستۍ میاشت وه، هغه مهال چې دهیواد په پاک اسمان دبهرني یرغل اودیموکراسۍ توري وريځې نه وې راخپرې شوې ،هغه وخت په نړۍ خصوصا په غرب کې د HIV یاداېډز د وبا خبره ډیره ګرمه وه ، دروغتیاد نړیوال سازمان راپورویلي و ، چې ایډزچې تراوسه یې څلویښت میلیونه وګړي وژلي همدااوس په اوسط ډول په کال کې دوه میلیونه وګړي دنړۍ په ګوټ ګوټ کې دژوندله خوږوله محرومـوي.نړیوالې روغتیایې اداري دخپلې کړې سروې له مخې داهم ویلي و چې دګردې نړۍ په سطحه افغانستان یوازینی هیواددی چې ددې ویروس مثبته پیښه نده پکې موندل شوې.

دا د افغانستان لپاره یو ستر ویاړ و، چې دداسې بدنام مرض څخه پاک او ساتلی پاته و، د هغه مهال د هیواد ورځپاڼې دا سرلیک مې اوس هم په یاد دی چې لیکلي یې و: له ایډز پاک افغانستان د اسلامي د اخلاقي فضائلو ستر روغتیایي حکمت.

مګر له هغه وخته دادی څوارلس کاله تیریږي په دې موده کې هیواد تر بهرني اشغال لاندې راغی، په هیوادکې د اشغال او دموکراسۍ تر سیوري لاندې فحاشي او لغړتوب پیل شو، دهمدې فحاش کلتور نتیجه ده چې سږ کال د دسمبر په لومړۍ د ایډز د ورځې په مناسبت د پژواک اژانس د یوه خبر سرلیک دی چې: په ننګرهار کې د ایډز ۷۴ پیښې ثبت شوي دي.

تاسو موازنه وکړئ، د اسلامي امارت په مهال په ګرد افغانستان کې دایډز یوه پیښه نه وه ، مګر اوس یوازې په یوه کوچني ولایت ننګرهار کې ۷۴ ته رسیدلي دي.

د دسمبر لومړۍ ورځې د ایډز له مرض سره مبارزې ته ځانګړې شوې ده ، سږ کال په همدې ورځ چې د نوي حکومت د روغتیا وزارت کوم راپور خپور کړی خورا بوږنوونکی او شرمناک دی، روغتیا وزارت وایي په تیر کال کې په افغانستان کې د ایډز د خپراوي سرعت لس فیصده زیات شوی

دی، د روغتیا وزارت دارقامو او احصایو له مخې ۱۳ کاله وړاندې د طالبانو دحکومت په مهال په افغانستان کې د ایډز هیڅ پیښه نه وه ثبت شوې، دبهرنیو ځواکونو او غرب زده ګانو له راتګ سره افغانستان ته ایډز راغی، او سرایت یې پیل شو، تر ۲۰۰۹ م کال پورې په درست افغانستان کې ۳۰۰ کسان په دې ویروس ککړ شول، خو له دې وروسته دایډز د سرایت کچه نوره هم زیاته شوه، تردې چې د سږکال د شمیرو له مخې ۱۲۹۴ تنه هیوادوال په دې مردار ویروس اخته او خپل مرګ ته شیبې ته شماري.

د روغتیا وزارت د اظهاراتو له مخې دا یوازې هغه کسان دي چې رسما په ایډز د مبتلا مریضانو په حیث پیژندل شوي او دروغتیا له وزارت سره ثبت دي، څرنګه چې په هیواد کې ایډز ته د یوه شرمناک مرض په سترګه کتل کیږي، داسې ګمان کیږي چې ددې څو برابره مریضان به داسې وي چې تراوسه یې خپل مرض پټ ساتلی او دشرم له وجې یې له روغتیا وزارت څخه مرسته نه ده طلب کړې، په همدې بنیاد د روغتیا وزارت اټکل کوي چې شاید په هیواد کې په ایډز د مبتلا مریضانو شمیر تر څلورنیم زرو زیات وي.

افغانستان چې روغتیایي اسانتیاوې په کې په نشت حساب دي، د حفظ الصحې امکانات یې ډیر ابتدایي دي، تر یو میلیون زیات معتادین لري چې له دې جملې شل فیصده معتادین یې د تزریق یا ستن لګولو له لارې مخدره مواد مصرفوي په داسې ډول چې لسګونه کسان خپل وینه یو تر بله تبادله کوي، ترڅو په نشه د ککړې وینې په توسط بل کس ته نشه انتقال شي، په داسې چاپیریال کې د ایډز د شیوع لپاره امکانات خورا زیات دي او دا د راتلونکي نسل لپاره یو بوږنوونکی خبر بلل کیدای شي.

د خیرنو له مخې ثابته شوې چې ایډز د ایبولا غونډې یو استعماري مرض دی، چې استعماریې قصدا په ځینو هیوادونو کې خپروي، افغانستان ته هم دا مرض له بهرنیو یرغلګرو او غرب زده ګانو سره راغلی چې د تلفاتو او شرمټول بار به یې هم ددوی په غاړه وي.

همدا اوس چې په هیواد کې د بهرنیانو لخوا له یوې خوا فحاشۍ او بې بندوبارۍ ته لمن وهل کیږي، او ورسره د ایډز د خپریدو کچه په بوږنوونکي ډول مخ پورته روانه ده، داسې ښکاري لکه استعمارګر چې دخپل دې راوړي مرض په توسط غواړي افغانانو ته سزا ورکړي.

دا چې په ایډز د اخته کیدو پیښې په یوه لسیزه کې له صفر څخه ترزرګونو رسیږي، باید په روغتیایي برخه کې د خطرزنګ په نظر ورته وکتل شي، که د اشغالګرو او ددوی دفاحشو اذنابو په شتون کې د ایډز سرایت دوام پیدا کوي کیدای شي په راتلونکو کلونوکې دا مرض په یوه وژونکې وبا واوړي چې بیا به یې کنټرول ممکن نه وي.

زموږ هیوادوال خپل وروسته پاتې والي او ابتدایي امکاناتو په پام سره په هیڅ ډول نه شي کولای په صحي او وقایوي هڅو سره د ایډز د سرایت مخه ونیسي، په هیواد او درانه اولس کې دایډز د مخنیوي یوازینۍ لاره دا کیدای شي، چې ددې بدمرغه مرض بیخ او جړ غوځ شي، د ایډز جړ بې دینه بهرنیان او ددوی زناکار ګوډاګیان دي، دا مرض له دوی سره راغلی او که دوی پسې واخلو نو مرض به یې هم ورسره لاړ شي، که بهرني فاحش اشغالګر په دې هیواد کې پاته وي ضرور به په شعوري او غیرشعوري توګه د ایډز سرایت ته وده ورکوي او په پای کې به دا مرض د افریقایي هیوادونو غوندې په وبا بدلوي ،په هغه صورت کې بیا نو باید دا ومنو چې راتلونکې نسلونه به مو د ایډز له لاسه د مرګ غیږې ته ځي.

## اهل سنت والجماعت

امام ابوالحسن اشعري) ۳۳۰هـ)او امام ابومنصور ماتريدي)۳۳۳هـ) رحمهما الله تعالی ،داهل سنت والجماعت د عقایدو علمبرداران او پدې هکله یې له مخالفینو سره ډیرې مجادلې کړي دي ،دعقایدو په ډګر کې ستره جګړه د اهل سنت والجماعت او معتزله وترمنځ پیښه شوي ،معتزله وو دخپلو نظریاتو داثبات لپاره ډیر عقلي دلایل استعمال کړل او د(خبرواحد)دحجتیت څخه یې انکار وکړ ،دمعجزاتوتر شاپې طبعي اسباب لټول ،اهل سنت خپل عقاید له قرآن اوسنت څخه ثابت کړل ،محدثین او فقهاء داهل سنت پر نظریاتي لاره لاړل ،اشاعره او ماتریدیه ،چې هم په عقیدوي میدان کې اهل سنت دي ،نودمعتزله وو پرخلاف یې ددوئ دوسلې څخه کار واخست، او په عقلي استدلال یې دوئ ته ځواب ووایه ،اوددوئ هره مسئله یې مستدله رد کړه ،ددې پایله داشوه، چې معتزله وو دعقل د وژنکیووسایلوپه ملاتړ اهل سنت والجماعت داعتزال په جال کې ونشوای نښلولای، او اهل سنتوچې دعقل سلیم او نقل صحیح له توافق څخه ځانته کومه سمه لاره انتخاب کړي وه ،داتر ډیره بریده دمتکلمینو دمرستې او هڅو ثمره وه ،ددې نه پس چې دمتکلمینو په لاره اومنهج (علامه نسفي یا علامه تفتازاني) تلل، دا سنتو ته ډیره نږدې وه

شپاړسمه برخه

# د جهاد فقهي مسائل

## جهاد کې محرمات او مکروهات

مفتی ابو محمد (حقانی)

### غدر ،غلول ،مثله

**حمل رأس العدو:** تیر بحث کې مو وویل چې مثله حرامه ده او مسلمانان به ترې اجتناب کوي ،اوس به دا روښانه کړو چې د کفارو یا اهل الحرب څخه سرپریکول او خپل مشرتابه ته یې ښودل جواز لري که نه ؟څرګنده خبره ده،چې څومره کفري لښکرې دمسلمانانودوینو تږې دي ،ددې نه زیات به مسلمانان ددې حرص کوي چې په محاربو کفارو( هغه چې ددوئ نه یې خاوره نیولې اوډول ډول ظلمونه یې پرې کړي ) دخپل سپیڅلې دین د ارشاداتو په رڼا کې پرې خپله سینه یخه کړي ،دابه پدې معنی نه وي ،چې وژنه به یې دهتک ،رسوایي او سپکاوي تر سرحده رسیږي ،بلکې دا به یې خپله دحقوقي دفاع یوه برخه وي او له خپل ځان ،ناموس او مال نه دفاع شرعا جواز لري .

خپل مشرتابه ته ددښمن دسر دوړلو مسئله دفقهاوو ترمنځ اختلافي ده ،ځینې یې په جواز اوځینې یې په عدم جواز قایل دي ، شوافع او حنابله رح وایې چې دکافر دسر اخستل او له ځانه سره وړل مکروه عمل دي او دلیل کې د(عقبه بن عامر) هغه روایت راوړي چې( بیهقي په سنن الکبری )کې رانقل کړی ،هغه داسې چې(عمروبن العاص رض )او( شرحبیل بن حسنه رض) دشام په لاره دده (عقبه بن عامر) په توسط د(یناق ) سر حضرت ابوبکرصدیق رض ته ورولیږه ،هرکله چې ورته د(یناق) سر وړاندې شو، نو بد یې وګاڼه او انکار یې پرې وکړ ،نو (عقبه) ورته وویل چې یا درسول الله صلی الله علیه وسلم خلیفه ! دوئ (کفار)هم داسې کوي ،نو

حضرت ورته وویل چې : أَفَاسْتِنَانٌ بِفَارِسَ وَالرُّومِ ؟ لا يُحْمَلُ إِلَيَّ رَأْسٌ فَإِنَّمَا يَكْفِي الْكِتَابُ وَالْخَبَرُ (٤) ژ :آیا دفارس اوروم غوندې وکړم او دهغوئ په شان داسې کار وکړو ،ماته باید سر رانه وړل شي ، بس یولیک او خبر راليږل بس دي ( المغني ٨ / ٤٩٤ ، وأثر أبي بكر أخرجه البيهقي ( ٩ / ١٣٢ ) . مثلة ٦)، نوددې روایت نه معلوم شول چې دکافر دسروړل مکروه او ممنوع دي .

مالکیان حضرات فرمايي :چې دکافردښمن سر له هغه ښاره وړل چې هلته وژل شوی وي ،بل ښار ته حرام دي ،اوداهم حرام ده ،چې دلښکر امیرته یې سر یوسي او دوئ دې ته مثله وايي (جواهر الإكليل ١ / ٢٥۴ ، والمغني ٨ / ۴٩۴ .

لکه په (الدر المختار ٣ / ٢٢٥ . )کې چې لیکلي دي : احناف علماءوايي که چیرته دا وژل شوی مشر دنورومشر کینو له مشرانو له ډلې څخه وواو ددوئ دغیظ او غصې سبب ګرځیده ،نو بیا یې وړل روا دي ،احناف علماء دلیل کې وايې چې :دبدر په ورځ ابن مسعود رض دابوجهل سر راوړ او دحضرت محمد صلی الله علیه وسلم مخکې یې واچاوه .((وَقَالُوا : وَقَدْ حَمَلَ ابْنُ مَسْعُودٍ يَوْمَ بَدْرٍ رَأْسَ أَبِي جَهْلٍ وَأَلْقَاهُ بَيْنَ يَدَيْهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ (ذكره ابن هشام في السيرة ( ٢ / ٢٧٨ ) نقلا عن ابن إسحاق بسند فيه جهالة .) .

**تسويدالوجه اوتسخيم الوجه :**

جمهورو فقهاوو ویلې چې تعزیراً دیوه چا مخ تور ول جواز نلري ،داځکه چې مخ اشرف الاعضاء او دانساني ښکلا او جمال معدن اومرکز دی او دا مخ دټولو حواسو منبع ده ،دا هغه شکل دی ،چې الله جل جلاله پیدا کړی او بیا یې پرې بني آدم مکرم کړی دی ،نوددې هر ډول تغییر ته مثله ویل کیږي او دا ناروا ده ،چې دا مسئله په لاندینو حوالو کې شته .(السرخسي- ١٦ / ١٤٥ ، وتبيين الحقائق ٣ / ١٧٠ وفصول الإستروشني في التعزير ٣٠ ، وجواهر الإكليل ٢ / ٢٢٥ ، والخرشي ٧ / ١٥٢ ، وكشاف القناع ٦ / ١٢٤ ـ ١٢٥ ، وعون المعبود ).

دې ته دفقهاوو په ژبه د(تسويدالوجه او تسخيم الوجه )کلمې کارول شوي ، چې تسويد الوجه دمخ تورولو ته وايي ،چې دا عام لفظ دی او په هر هغه شئ یې اطلاق کیږي ، چې مخ تورولای شي ،خوتسخيم الوجه په تور کیو(هغه چې د دیګي یا

کتهوې بیخ پورې چې کوم تور کي نښتې وي) دمخ تورولو ته وایې ؛ په (الموسوعة الفقهية ج١١ص٣٥٣) کې دیوچا تعزیر کې دمخ دتورولونه دانکار کوونکیو او نه منونکیولپاره ترې دجمهورو فقهاووپه معتبرو الفاظو تعبیر شوی، ځکه دا خبره البته ډیره کوټلې او ډیرومتبحرو علماوولمه نظر سره مترادف ده، که نه حقیقت کې دا صرف داحنافورح او مالکیانو رح نظر دی، شوافع رح او نور یې زیاتو موارد وکې په جواز قایل دي.

امام شمس الائمه سرخسی رح فرمایي چې د(تسویدالوجه )یا مخ تورولو په منسوخ کیدو باندې دلیل شته هغه دا دی چې دا مثله ده (المبسوط للسرخسي ١٦/ ١٤٥ .).

امام سرخسي رح فرمایي چې دتسخیم الوجه یا ددیګ ،تبی‌یا چاییراو نوروپه تور کیودیوه انسان دمخ تورولو حکم دادی ،چې دامثله ده او مثله اسلام کې ناروا ده ،حضرت پیغمبر محمد صلی الله علیه وسلم له مثلې نه منع کړي ده ،اګرکه دا داړونکې سپي هم وي ،یعنې دداړونکې سپي مثله هم جواز نلري (المبسوط للسرخسي ١٦ / ١٤٥ . حديث : " نهى النبي صلى الله عليه وسلم عن المثلة ولو بالكلب العقور ... " . أخرجه الطبراني في المعجم الكبير ( ١ / ١٠٠ ) ، وقال الهيثمي في مجمع الزوائد ( ٦ / ٢٤٩ ) : إسناده منقطع .)

نوداحنافو اومالکیانورح په عقیده دمجرم او دداسې یوه چا چې دتعزیر وړ وي ،په کوچني ډول سزااو تعزیر کې مخ تورول نارواشول او باید واکمن یا محلي چارواکي ترې اجتناب وکړي .

شوافع او حنابله حضرات فرمایي :چې په تعزیراتو کې دیوچا مخ تورول جوازلري ،ځکه دوخت امام دتعزیراتو په جنسیت او قدر کې کوښښ کوي او دهر هغه چا لپاره چې دتعزیر وړ وي ،دهغه سره مناسب اودهغه دجنایت سره برابره سزا یا تعزیر ټاکي ،پداسې حال کې چې ترتیب او تدریج هم په نظر کې نیسي ، نودهرچالپاره داسې جګه مرتبه نه ټاکي ،چې هغه ددې نه دټیټې مرتبې وړ وي (نهاية المحتاج ٨ / ١٦ ، وأسنى المطالب ٤ / ١٦٢ ، وحاشية الجمل على شرح المنهج ٥ / ١٦٤ ، ومطالب أولي النهى ٦ / ٢٢٣ .- ١١٠ -)

نوربیا..................

# اسلام

ISLAM

# د تمدن او پرمختګ دین دی

ژباړه: عبدالله (حامد)

په دوهم جنګ جهاني کې درې عسکرو د ( هټلر ) اوامرو څخه سرغړونه کړې وه، چې هتلر ورته په عجیبه طریقه سزا ورکړې وه ، درې واړو څخه یې هر یو په ځانته بندي خانه کې بندیان کړي وو، هریو ته یې کلاسیک موسیقي شروع کړې وه او مخې ته یې داوبو نلکه ( پایپ ) ورته لګولې ؤ، چې ډیر په ارامه یو یو څاڅکی اوبه راتللې .

ورته ویلې و، چې هریو بندي خانه کې زهریله ګاز دی، چې دوي به په ٦ شپږو ساعتونو کې وژني کله چې ۴ ساعتونو څخه وروسته وکتل شول، چې ۲ دوه تنه عسکر مړه شوي وو، او یو یې د مرګ په اخري لحظه کې ؤ .

حال دا چې د وژونکي ګاز خبره یو چل او نفسي جنګ و، بلکې دوی په خپلو عقلونو باندې د وژونکي ګاز فکر کولو فشار له امله مړه شوي وو .

نن ورځ داسلامي نړۍ مسلمانانو هم دغه حال دی د فکري جنګ په ډګر کې روزانه داسې وژونکي افکار ، او زهریله مقالې زمونږ ذهنونو ته وړاندی کوي . او بیا مونږ یې بغیر د تفکیر څخه تکراروو او رښتیا یې ګڼو، چې په پایله کې خپل ځانونه او ټولنه په خپل لاس وژنـــــــــــــــو.

لدی فکري وژنې له ویناوو څخه بعضي په لاندې توګه دي، چې ترې یادونه کوو:

۱ -عرب ( ټول مسلمانان ) پسمانده او سست خلک دي.

۲ -اسرائیل په نړۍ کې قوي لښکر لري

۳ -مونږ ته پکار ده ،چې (۱۰۰) سلګونه کلونه بعد دغرب تمدن ته ورسیږو.

۴ -غربي تمدن د نړۍ لپاره یوه نمونه ده.

۵ – د عربي نړۍ (اسلامی نړۍ) ځوانان په فساد کې غرق دي.

٦ – مونږ د یو نوې شئ اختراع نشو کولای.

۷ – اسلامي امت ټوټه ټوټه دی اوخپل حیثیت یې له لاسه ورکړی.

دا یو څو مثالونه دي ،چې مونږ خپله ځانونو ته پرې قناعت ورکوو او دا مو حقیقي او واقعي افکار ګرځولي دي، حال دا چې د غرب رسنیزو فعالیتونو او هلو ځلو په وسیله دغه شیان خپاره شوي . حقیقت دا دې چی عرب او ټول مسلمانان د تمدن سره اشنا او بیداره خلک دي ،اسرائیل لښکر هیڅ قوي نه دی، ځکه د نړۍ فوځي حمایت تر څنګ یې هم د حماس یو څو مجاهدینو مقابله ونه شو کولای . تاریخ که مطالعه شي، نو نوې اختراعات د مسلمانانو په لاسونو شوي ، خلافت د تمدن دوره شمیرل کیږي ،غربي نړۍ د وحشت او بربریت نمونه بللی شو ، مسلمانان ځوانان په فساد کې نه، بلکی بیا د ویښتابه په طرف روان دي . او داسلامي نړۍ بچیان ددې توان لري، چې نوي شیان اختراع کړي او کفارو مقابله په هر میدان کې وکړي ،آینده به د اسلام او مسلمانانو وی ...یهود ، نصاری اوټول کفار به ذلیله کیږی ، اسلام به سرلوړی او کامیاب وي.

خو متاسفانه به ووایم، چې د مسلمانانو قیادت د نړۍ په سطحه دصالحو خلکو په لاس نه دی، نو پکار ده مسلمانان خپل اصیل دین چې شامل کامل نظام دی، په هراړخیز شکل وپیژني ،اسلامي دین د عقیدي ، عبادت ، معلاملات ، سیاست ، اقتصاد ، عسکریت او حکومت له ټولو شیانو څخه بحث کوي .نو پکار ده، چې مسلمانان خپلو سره یو شي او هغه تیر عزت او برم چې اسلام او مسلمانانو درلوده بیرته اعاده کړي.



# قرآن طرف ته راشئ!!

ليکوال: ډاکټر فضل عظيم
ژباړن: عبدالصبور مبارز

د قرآن کريم دوه نومونه ذاتي او ۵۵ صفاتي دي، د ذاتي نومونو څخه يو يې قرآن دی چې معنی يې لوستل دي، او بل يې کتاب دی چې معنی يې ليکل شوې چې ياد نومونه دواړه په قران کريم کې ذکر شوي دي) . لو انزلنا هذا القران) ( ذلک الکتاب لاريب فيه) قران په نړۍ کې تر ټولو زيات لوستونکی کتاب دی، او د ليکنې له لحاظه تر ټولو محفوظ هم دی، د ۱۴ سوه کالو په تيريدو سره په دې کتاب کې د زور او زير زياتوالی يا کموالی هم نه دی راغلی، مونږ ويلی شو چې له يوې خوا نه دا قران د لاکهاوو حافظانو په سينو کې ساتل شوی دی او له بلې خوا د لاکهاو کتابونو غيره هم د قران له الفاظو ډکه ده، او الله تعالی هم په خپل کلام کې دې نقطې ته اشاره کړې ده او فرمايي:

انا نحن نزلنا الذکر و انا له لحافظون

په مسلمانانو د قران حقوق په بنستيز ډول قران په مسلمانانو پنځه حقوق لري چې په لاندې توګه ترې لنډه يادونه کوو:

په مسلمانانو د قران حقوق په بنستيز ډول قران په مسلمانانو پنځه حقوق لري چې په لاندې توګه ترې لنډه يادونه کوو:

۱.منل ( ايمان راوړل ) امن الرسول بما انزل اليه من ربه و المومنون

۲- لوستل ( تلاوت کول ) يتلونه حق تلاوته

۳ پوهېدل ( تذکر او تدبر کول ) افلا يتدبرون القران ام علی قلوب اقفالها

۴ عمل کول ( بالفعل يې احکام نافذول ) ما امن بالقران من استحل محارمه

۵ خپرول ( نورو ته رسول او تبليغ کول ) بلغ ما انزل اليک ) ليکن اوسني مسلمانان د قران سره څه کوي؟

په اوسنۍ زمانې کې مسلمانان د قران د پنځه حقوقو د اداء کولو پر ځای د قران سره داسې سلوک کوي چې بلکل د قران د پنځه حقوقو په مقابل کې قرار لري چې په لاندې ډول

ترې د قران د حقوقو په څېر په پنځو شمارو کې یادونه کوو:

۱د لورد واده پر وخت ورته یو جلد د برکت په خاطر ډالی کول تر څو د میړه کور ته یې له ځان سره یوسي.

۲د لورد وېدو پر مهال قرآن ورته په سر نیول

۳فال نیول

۴د حمل پر وخت د ښځې سر ته کیښودل

**۵** د وفات پر وخت د سورت یاسین لوستل، او یا هم مړي ته د ثواب د بخښلو په خاطر ختمونه کول

دا کتاب د دې پر ځای چې د هدایت ذریعه وګرځو مونږ ترې د مرګ د نسخې په ډول استفاده کوو.

علامه اقبال رحمه الله دې حقیقت ته په خپل یو شعر کې داسې اشاره کړې ده:

**بایاتش تراکاری جز این نیست**

**که از یاسین او اسان بمیري**

**ژباړه:** ستا د قران سره بغیر له دې چې د یاسین سورت ولولئ او مرګ درته اسان شي بل هیڅ تعلق نشته.

**په صحیح معنا د قران پېژندونکي**

کومو کسانو چې قران یې په درسته او تمامه معنا پېژندلی دی د هغوئ دځینو یادونه په لاندې ډول کوو:

**•حضرت جبرایل علیه السلام او قرآن**
**•حضرت محمد صلی الله علیه وسلم او قرآن**
**•حضرت عمر فاروق رضی الله عنه او قرآن**
**•حضرت عایشه ، حضرت فاطمه رضی الله عنهما او قرآن**
**•امام احمد بن حنبل رح او قرآن**
**•امام ابوحنیفه رح او قرآن**
**•شیخ الهند مولانا محمود الحسن رح او قرآن**
**•علامه اقبال رح او قرآن**
**•رحمان بابا او د اخرت فکر**

حضرت جبرایل علیه السلام او قران

حضرت جبرایل علیه السلام جلیل القدر ملایکه ده، نوموړي هم د قران د نزول سره د ډاډ او سکون ساه واخیسته، یو واریې رسول الله صل الله علیه وسلم سره په خبرو کې وویل: ستا د راتلو نه مخکې زه د خپل انجام په هکله سخت ویریدم، ځکه ما د شیطان انجام لیدلی وو، خو کله چې تاسې په بعثت مبعوث شوئ نو دا ایت نازل شو: (إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ذِي قُوَّةٍ عِندَ ذِي الْعَرْشِ مَكِينٍ مُّطَاعٍ ثَمَّ أَمِينٍ) (تکویر ۲۱،۲۰،۱۹) ژباړه: بیشکه دا قران خامخا قول وینا د رسول عزتمن ( جبریل ) ده چې خاوند د قوت زور په نزد د څښتن د عرش مرتبه والا دی منلی شوی دی هلته امین دی

د دې ایت نه وروسته ماته ډاډ حاصل شو، ځکه الله تعالی ماته امانت دار خطاب کړی وو.

**حضرت محمد صلی الله علیه وسلم او قران**

د رسول صل الله علیه وسلم تعلق د قران سره د عائشې رضی الله عنها له دې قول نه په ښه شکل معلومیږي ، چې فرمایي ( کان خلقه القران

) د هغه اخلاق د قران کریم د تعلیماتو یو ثرګند تصویر وو.

یو وار حضرت محمد صل الله علیه وسلم ابی بن کعب راوغوښت او ورته یې وویل :ابي ماته قران واوروه، حضرت ابي بن کعب ترې په حیرانتیا وپوښتل:

زه قران ولولم؟

وعلیک انزل، سره له دې چې قران په تاسې نازل شوی دی، حضور صل الله علیه وسلم وفرمایل: الله تعالی فرمایلي دي چې ابي به قران لولي، ابي وویل

آیا الله تعالی تاسې ته زما نوم واخیست؟ (هو سماني؟)

رسول الله صل الله علیه وسلم وفرمایل: هو الله تعالی راته ستاسې نوم واخیست، له دې سره ابي د قران په لوستلو پیل وکړ ،کله چې دې ایت ته راورسیده )فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِن كُلِّ أمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَـؤُلاء شَهِيداً ).(النساء ٤١) نو څرنګه (حال) به وي په هغه وخت کې چې راولو مونږ له هر یوه ( پخواني) امت څخه یو شاهد ( ددوی له انبیاوو څخه ) او راولو مونږ تا (ای محمده) پر دغه (محمدي امت باندې) شاهد ( احوال ویونکی)

د حضور صلی الله علیه وسلم په سترګو کې اوښکې ډنډ شوې او بې اختیاره یې وویل

حسبک حسبک، بس کړه بس، ابی چې کله د حضور صل الله علیه وسلم مخ مبارک ته وکتل ،نو ګوري چې د رسول الله صل الله عیله وسلم له سترګو بې اختیاره اوښکې روانې دي.

د قران د عظمت په هکله د رسول الله صل الله علیه وسلم یو څو احادیث د نمونې په ډول دلته رانقلوو:

خیرکم من تعلم القران وعلمه ( تاسو کې بهتر هغه څوک دی چې قران یاد کړي او بیا یې نورو ته وښايي )

ما امن بالقران من استحل محارمه ( چا چې د قران حرام کړي شیان حلال وبلل هغه په قران ایمان نه دې راوړی )

من شغله القران عن ذکری ومسالتي اعطیته افضل ما اعطی للسائلین ( څوک چې قران داسې مشغول کړي چې زما د ذکر او سوال وخت هم ورته پیدا نشي، نو هغه ته به زه د سائلین نه زیات عطا کومه.

یا اهل القران لا تتوسدوا القران ) د قران نه تکیه مه جوړوې ) واتلوه حق تلاوته انا اللیل او النهار ( او داسې یې تلاوت کړې لکه څنګه چې یې حق دی، شپه او ورځ ) وافشو ( دا خپور کړئ (وتغنوه ( او دا په خوش اوازی سره ولولئ ) وتدبرو ( او په دې کې تدبر وکړئ ( لا یشبع منه العلماء ولا يخلق عن كثرة الرد ( او په بیا لوستلو سره ددې په خوند کې کمي نه رائي ) لاتنقضی عجائبه (او ددې عجایب نه ختمېدونکي ( و هو حبل الله المتين ( او دا د الله تعالی کلکه او مظبوطه رسۍ ده.

**حضرت عمر فاروق رضی الله تعالی عنه او قرآن**

یو وار عمر رضی الله تعالی عنه د څښلو لپاره د اوبو غوښتنه وکړه، خو د اوبو پر ځای ورته شربت راوړل شو، عمر رضی الله عنه چې کله د شربت په څښلو پیل وکړ، نو په سترګو کې یې اوښکې راغلې، شربت راوړونکي ترې د ژړا د علت پوښتنه وکړه، حضرت عمر رضی الله تعالی عنه ورته په جواب کې وویل: ماته د قرآن دا ایت رایاد شو، چې الله تعالی فرمايي: أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَاتِكُمْ فِي حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا وَاسْتَمْتَعْتُم بِهَا فَالْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُونِ بِمَا كُنتُمْ تَسْتَكْبِرُونَ فِي الأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَبِمَا كُنتُمْ تَفْسُقُونَ ( احقاف)

ژباړه: هغوئ ته به وویل شي، تا سود خپلې برخې پاک شیان په خپل دنیاوي ژوند کې ختم کړي دي، نو نن به درته د ذلت عذاب درکړل شي ،ځکه تاسو په ځمکه کې په ناحقه تکبر کاوه او حکم عدولي دې کوله.

**حضرت عائیشه رضی الله عنه او قرآن**

یو وار ام المومنین حضرت عائشه رضی الله عنه دا آیت ولوست، په زړه یې ورته اثر وکړ، ټوله شپه یې همدا آیت تکراراوه او ژړل یې: وَبَدَا لَهُم مِّنَ اللَّهِ مَا لَمْ يَكُونُوا يَحْتَسِبُونَ. (الزمر ٤٧) او هغه سره به د الله تعالی له لورې داسې معامله وشي، چې د هغه په ګمان کې به هم نه وي

نومورې د خپل راتلونکي په اړه فکر کاوه او لړزیده.

**حضرت فاطمه رضی الله عنه او قرآن**

روایت دی چې د ژمي په اوږدو شپو کې فاطمې رضی الله عنه د ماختن لمونځ د اداء کولو وروسته د دوه نور رکعتونو نیت وتاړه، په لمانځه کې د قران کریم تلاوت دومره خوند ورکړ ،چې همداسې یې آیتونو پسې آیتونه لوستل ،کله یې چې سلام وګرځاوه ګوري چې سحر شوی دی، په ژړا یې پیل وکړ او عرض یې وکړ: ای الله ستا شپې دومره لنډې شوي چې ما د دوه رکعتونو نیت وتاړه او ستا شپه خلاصه شوه.

**امام احمد بن حنبل رح او قرآن**

امام احمد بن حنبل رح د وخت خلیفه په دې پوښتنې چې قرآن مخلوق دی او که نه؟ دومره دورې وواهه که چیرې دومره دورې فیل هم وهل شوی وی ،نو خوړین شوی به وی، لیکن امام احمد بن حنبل د قرآن سره د تعلق له امله دا هر څه په ارامۍ سره وزغمل.

**امام ابوحنیفه رح او قرآن**

امام ابوحنیفه ته امام اعظم هم ویل کیږي، نومورې په حقیقت کې تابعي دی، ځکه د نومورې ملاقات د رسول الله صل الله علیه وسلم د جلیل القدر صحابي حضرت انس رضی الله عنه سره شوی و، امام اعظم رح یوائې د روژې په مبارکه میاشت کې ۶۳ ځلې د قران ختم کاوه

**شیخ الهند مولانا محمود الحسن رح او قرآن**

د شیخ الهند محمود الحسن معمول وو ،چې د ماختن لمانځه نه نیولې تر سهاره پورې به یې په تراویح لمونځ کې قرآن کریم تلاوت کاوه.

**علامه اقبال او قران**

علامه اقبال هغه شخصیت دی ،چې د قرآن اصلي او شامل مفهوم یې پېژندلی او پخپله بې پناه او خوږه شاعرۍ کې یې د قران مفاهیم ځای په ځای کړي دي، په نویو تعلیم یافته اشخاصو کې علامه اقبال هغه شخص دی چې د قران نه بې حده متاثره او د قران عملي کوونکی وو ، چې د قران تعلیم یې په خپلو اعمالو او شاعرۍ کې خلکو ته رسولی دی.



د علامه اقبال رح یو فارسي شعر په دې هکله ډېر مشهور دی چې فرمایي:

**گر تو مي خواهي مسلمان زيستن**

**نيست ممكن جز بقرآن زيستن**

یعنې که ته غواړې چې د یو واقعي مسلمان په توګه ژوند تیر کړې نو دا بغیر د قران نه امکان نلري.

**رحمان بابا رح او د اخرت فکر**

دا چې رحمان بابا دنیاوي او اخروي ژوند ته په کومه سترګه کتل د هغه د شعرونو نه په ښه شکل څرګندیږي نو زه هم دلته د رحمان بابا د یو څو شعرونو مفهوم رانقلوم، البته یادونې ته اړیم چې وواېم د رحمان بابا د فکر منبع هم قرآني تعلیمات وو:

•ستا اړتیا له یوې ډوډۍ او یوې زړې کمپلې څخه پوره کیږي، داسې نشي چې د غوښې او وریجې د نشتون له امله د ژوندانه کار ته شا کړې.

•د لباس هدف د عورت پټول دي نه دا چې د تاج او جواهراتو استعمال

•کله چې ته د دې دنیا د تیارو نه ډاریږې، نو بیا د قبر د تیارو په هکله تا سره څه علاج دی.

•د دنیاوي کارونو لپاره دې ټول عمر ملا کږه کړې ده، خو کله چې د دوه رکعته لمونځ وخت راشي نو کږه ملا دې بیا ماته وي.
•مار چې کله د سوري خوا ته نژدې شي نو خپل ځان برابر او مستقیم کړي، خو ته هره ورځ د قبر خوا کې تیریږې او بیا هم صحیح لارې ته نه راګرځې.

•که زما نه اورې نو خپله سترګې خلاصه کړه برباد به شې که ځان د قراني تعلیماتو تابع نه کړ، ته حیوان یې که بني ادم.

په تېر پسې

# دشهادت غوښتنې او فدايي عملياتو

# په هکله شرعي دلائل

ليکوال: علي بن نايف الشحود الدمشقي
ژباړه: شيخ ابوعبدالله مخلص

٨ - عَنْ نُعَيْمِ بْنِ هَمَّارٍ، أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم -:أَيُّ الشُّهَدَاءِ أَفْضَلُ؟ قَالَ:"الَّذِينَ إِنْ يُلْقَوْا فِي الصَّفِّ لَا يَلْفِتُونَ وُجُوهَهُمْ حَتَّى يُقْتَلُوا، أُولَئِكَ يَتَلَبَّطُونَ فِي الْغُرَفِ الْعُلَى مِنَ الْجَنَّةِ، وَيَضْحَكُ إِلَيْهِمْ رَبُّكَ، وَإِذَا ضَحِكَ رَبُّكَ إِلَى عَبْدٍ فِي الدُّنْيَا فَلَا حِسَابَ عَلَيْهِ (مسند أحمد ط الرسالة (٣٧/ ١٤٤) (٢٢٤٧٦) صحيح)

ژباړه: د همار له زوي نُعَيْم نه روايت دی نوموړی وايي له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه يو سړي پوښتنه وکړه، په شهيدانو کې کوم يو شهيد غوره دی؟ رسول صلی الله عليه وسلم ورته وويل: هغه شهيدان غوره دي چې له دښمن سره په صف کې پداسې حال کې مخامخ شي چې مخونه له دښمنانو نه بل لوري ته نه اړوي، دغه کسان به د جنت په لوړو پوړيو ودانيو کې ګرځي راګرځي، اوالله جل جلاله ورته خاندي، کله چې الله جل جلاله يو بنده ته په دنيا کې وخاندي له هغه سره به حساب نه کيږي.

٩ -ژباړه: له ابو الدرداء نه روايت دی، هغه وايي: رسول الله صلی الله عيله وسلم ويلي: درې کسان دي الله جل جلاله مينه ورسره کوي، ورته خاندي (خوښي ورنه ځرګندوي) زړې ورکوي، يو هغه کس دی چې ملګري يې د جګړې له ميدان نه وتښتي او دی د الله جل جلاله لپاره يوازې او تنها له دښمن سره تر هغو جګړه وکړي چې يا الله جل جلاله مرسته ورسره وکړي او له دښمن نه يې و ساتي، او ياهم شهيد شي، الله جل جلاله وايي: زما بنده ته وګورئ! څرنګه يې زما لپاره صبر وکړ، دويم هغه کس دی چې ښه ښايسته ښځه او ښه نرمه بستره لري د شپې د لمانځه لپاره راپورته شي، خپل شهوت پرېږدي، ما ياد وي، او ماته زارۍ کوي، که يې خوښه وای

ويده شوي به واى، او دريم هغه كس دى چې په سفر كې له نورو ملګرو سره وي، ډېر بې خوبه، ستړي، او په تكليف شي، بيا هغوي ويده شي، او دى په هغوي كې د شپې په وروستۍ برخه كې په سختۍ او يا هم اسانۍ كې د لمانځه لپاره راپورته شي. (الأسماء والصفات للبيهقي (٢/ ٤٠٨) (٩٨٣) والمستدرك على الصحيحين للحاكم (١/ ٧٧) (٦٨) صحيح.)

**د د ليلونو څرګندونه:**

له دې درې واړو احاديثو نه دا څرګنده شوه چې په جهاد كې تر ټولو غوره عمل هغه دى چې په غالب ګمان سره انسان يكې روغ نه پاتې كېږي، او د جهاد لپاره ځانګړي دلايل پدې دلالت كوي كوم عمل چې په بل ځاى كې ناروا وي په جهاد كې بيا هغه روا وي.

١٠ - عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -: «عَجِبَ رَبُّنَا مِنْ رَجُلَيْنِ: رَجُلٍ ثَارَ عَنْ وِطَائِهِ وَلِحَافِهِ مِنْ بَيْنَ حِبِّهِ وَأَهْلِهِ إِلَى صَلَاتِهِ، فَيَقُولُ اللَّهُ جَلَّ وَعَلَا لِمَلَائِكَتِهِ: انْظُرُوا إِلَى عَبْدِي، ثَارَ عَنْ فِرَاشِهِ وَوِطَائِهِ مِنْ بَيْنَ حِبِّهِ وَأَهْلِهِ إِلَى صَلَاتِهِ رَغْبَةً فِيمَا عِنْدِي، وَشَفَقَةً مِمَّا عِنْدِي، وَرَجُلٍ غَزَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَانْهَزَمَ أَصْحَابُهُ، وَعَلِمَ مَا عَلَيْهِ فِي الِانْهِزَامِ، وَمَا لَهُ فِي الرُّجُوعِ، فَرَجَعَ حَتَّى هُرِيقَ دَمُهُ، فَيَقُولُ اللَّهُ لِمَلَائِكَتِهِ: انْظُرُوا إِلَى عَبْدِي، رَجَعَ رَجَاءً فِيمَا عِنْدِي، وَشَفَقًا مِمَّا عِنْدِي حَتَّى هُرِيقَ دَمُهُ» (صحيح ابن حبان - مخرجا (٦/ ٢٩٨) (٢٥٥٨) والسنن الكبرى للبيهقي (٩/ ٢٧٦) (١٨٥٢٤) صحيح.).

ژباړه: له عبد الله بن مسعود رضي الله عنه روايت دى نوموړى وايي: رسول صلى الله عليه وسلم ويلي: الله جل جلاله له دوه كسانو نه د خوښۍ څرګندونه كوي، يو هغه كس دى چې له خپلې بسترې او د خپلې بي بي له څنګ نه لمانځه ته پورته شي، الله جل جلاله خپلو ملائكو ته وايي: زما بنده ته وګورئ، له خپلې بسترې او خپلې بي بي نه زما د جنت د هڅې او زما له وېرې نه لمانځه ته پورته شولو، او دويم هغه كس دى چې د الله جل جلاله په لاره كې غزا كوي، ملګري يې شاته شي، او دى پدې پوهېږي چې له دښمن نه د تېښتې او شاته كېدلو څومره ګناه ده، او په بېرته راګرځېدلو كې ورته څومره ثواب دى، بېرته د جګړې مېدان ته راوګرځي، تر هغو له دښمن سره وجنګېږي تر څو يې وينه توى شي، الله جل جلاله ملائكو ته وايي: زما بنده ته وګورئ چې زما د جنت په تمه او زما له وېرې بېرته د جګړې ميدان ته راوګرځېد تر څو يې وينه توى شوه.

**د دليل څرګندونه:**

ابن النحاس وايي: كه پدې اړه يوازې همدا صحيح حديث هم موجود واى زمونږ لپاره يې د دښمن په صف كې د ننوتلو په اړه په

دلیل نیو نه او د هغه د فضیلت په هکله بسنه کوله.

١١ - عَنْ زَيْدِ بْنِ ظَبْيَانَ، رَفَعَهُ إِلَى أَبِي ذَرٍّ، عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ: ثَلَاثَةٌ يُحِبُّهُمُ اللهُ: رَجُلٌ أَتَى قَوْمًا فَسَأَلَهُمْ بِاللهِ، وَلَمْ يَسْأَلْهُمْ بِقَرَابَةٍ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُمْ فَمَنَعُوهُ، فَتَخَلَّفَهُمْ رَجُلٌ بِأَعْقَابِهِمْ فَأَعْطَاهُ سِرًّا لَا يَعْلَمُ بِعَطِيَّتِهِ إِلَّا اللهُ، وَالَّذِي أَعْطَاهُ، وَقَوْمٌ سَارُوا لَيْلَتَهُمْ حَتَّى إِذَا كَانَ النَّوْمُ أَحَبَّ إِلَيْهِمْ مِمَّا يَعْدِلُ بِهِ نَزَلُوا فَوَضَعُوا رُؤُوسَهُمْ، فَقَامَ يَتَمَلَّقُنِي، وَيَتْلُو آيَاتِي، وَرَجُلٌ كَانَ فِي سَرِيَّةٍ فَلَقُوا الْعَدُوَّ فَهُزِمُوا، فَأَقْبَلَ بِصَدْرِهِ حَتَّى يُقْتَلَ أَوْ يُفْتَحَ لَهُ (السنن الكبرى للنسائي (٢/ ١٢١) (١٣١٦ و١٣١٧) صحيح.).

ژباړه: د ظبیان له زوي زید نه روایت دی چې ابو ذر رضي الله عنه ته یې د حدیث سند رسولی هغه له رسول الله صلی الله عیله وسلم نه روایت کوي رسول الله صلی الله علیه وسلم وایي: له درې کسانو سره الله جل جلاله مینه کوي، یو هغه کس دی چې یو قوم ته یو سړی د سؤال لپاره راشي او له هغوي نه له خپلو لۍ نه پرته او یوازې د الله جل جلاله په نوم څه وغواړي، هغوي څه ورنه کړي، په هغوي کې یو کس له هغوي نه وروسته او په پټه سره یو څه ورکړي، چې په ورکړه یې یوازې الله جل جلاله او هغه کس چې څه یې ورکړي خبروي، او دویم له هغه کس سره مینه کوي چې له یوې ډلې سره پداسې حالت کې ټوله شپه سفر وکړي چې کله خوب هغوي ته له هرڅه نه غوره وي، هغوي خپل سرونه د خوب کولو په موخه کېږدي، او دغه سړی ماته زارۍ پیل کړي، او زما ایاتونه تلاوت کوي، او دریم له هغه سړي سره مینه کوي چې په یوه غزا کې له دښمن سره مخامخ شي، هغوي په شا شي او دی یوازې را مخامخ شي ان تردې چې یا الله جل جلاله بریا ورپه برخه کړي او یاهم شهید شي.

١٢ - عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللهِ - صلى الله عليه وسلم -،أَنَّهُ قَالَ: «مِنْ خَيْرِ مَعَاشِ النَّاسِ لَهُمْ، رَجُلٌ مُمْسِكٌ عِنَانَ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ، يَطِيرُ عَلَى مَتْنِهِ، كُلَّمَا سَمِعَ هَيْعَةً، أَوْ فَزْعَةً طَارَ عَلَيْهِ، يَبْتَغِي الْقَتْلَ وَالْمَوْتَ مَظَانَّهُ، أَوْ رَجُلٌ فِي غُنَيْمَةٍ فِي رَأْسِ شَعَفَةٍ مِنْ هَذِهِ الشَّعَفِ، أَوْ بَطْنِ وَادٍ مِنْ هَذِهِ الْأَوْدِيَةِ، يُقِيمُ الصَّلَاةَ، وَيُؤْتِي الزَّكَاةَ، وَيَعْبُدُ رَبَّهُ حَتَّى يَأْتِيَهُ الْيَقِينُ، لَيْسَ مِنَ النَّاسِ إِلَّا فِي خَيْرٍ» (صحيح مسلم (٣/ ١٥٠٣) ١٢٥ - (١٨٨٩).).

ژباړه: له ابو هریرة رضي الله عنه نه روایت دی نوموړی وایي: رسول صلی الله علیه وسلم ویلي: د خلکو ترټولو غوره ژوند د دوه کسانو دی: یو د هغه کس ژوند چې د الله جل جلاله په لاره کې یې د خپل اس واګې یې په لاس کې نیولې وي کله چې وېروونکې اواز واوري د هغه اس

په شا په ډېره تېزۍ سره ورشي، د مرګ او وژلو ځايونه لټوي، دويم هغه کس دی چې د غرو له سرونو نه د يو غره په سر او ياهم له درو نه په يوه دره کې له خپلو لږو مېږو او وزو سره او سېږي، لمونځ کوي، زکواة ورکوي، او تر مرګه پورې د الله جل جلاله عبادت کوي، په خلکو کې يوازې همدغه دوه کسان په خير کې دي.

١٣ - عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صلى الله عليه وسلم -:"لَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ، يَكُونُ أَفْضَلُ النَّاسِ فِيهِ بِمَنْزِلَةٍ، رَجُلٍ أَخَذَ بِعِنَانِ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ، كُلَّمَا سَمِعَ بِهَيْعَةٍ اسْتَوَى عَلَى مَتْنِهِ، ثُمَّ طَلَبَ الْمَوْتَ مَظَانَّهُ، وَرَجُلٌ فِي شِعْبٍ مِنْ هَذِهِ الشِّعَابِ، يُقِيمُ الصَّلَاةَ، وَيُؤْتِي الزَّكَاةَ، وَيَدَعُ النَّاسَ إِلَّا مِنْ خَيْرٍ (مسند أحمد ط الرسالة (١٥/ ٤٥٠) (٩٧٢٣) صحيح.).

ژباړه: له ابو هريرة رضي الله عنه نه روايت دی نوموړی وايي: رسول صلی الله عليه وسلم ويلي: په خلکو به داسې يوه زمانه راشي چې ترټولو غوره کسان به يکې دوه کسان وي: يو به هغه کس ترټولو غوره وي چې د الله جل جلاله په لاره کې يې د خپل اس واګې په لاس کې نيولې وي، کله چې وېروونکی اواز واوري د آس په شا په منډه ورشي، او مرګ په خپلو ځايونو کې لټوي، او دويم غوره کس به هغه کس وي چې د غرونو له سرونو نه د يوغره په سر او يا هم د له درو نه په يوه دره کې لمونځ کوي، زکواة ورکوي، او خلکو ته يې پرته له خير او ښېګڼې نه نورڅه نه رسېږي.

**د دليل څرګندونه:**

دا تېر شوي دواړه حديثونه پدې دلالت کوي چې په تنها او يوازې ډول سره د شهادت غوښتنه په اسلامي شريعت کې ممدوح او يو د ستاينې وړ عمل دی.

١۴ –ژباړه: له انس ابن مالک رحمه الله نه روايت دی نوموړی وايي: رسول الله صلی الله عليه وسلم بُسَيْسَة صحابي رضي الله عنه د دې لپاره د څارنې او جاسوسۍ لپاره ولېږه چې د ابو سفيان د قافلې په هکله معلومات تر لاسه کړي، پداسې حالت کې راغی چې په کوټه پرته له ما او رسول الله صلی الله عليه وسلم نه نورڅوک نه ؤ، له نوموړي نه روايت کوونکی راوي وايي زه پدې نه پوهېږم چې انس رضي الله عنه دې د رسول الله صلی الله عليه وسلم ځينې بې بيانې هم مستثنی کړې وي، بسيسة رسول الله صلی الله عليه وسلم ته خبره وکړه، له دې نه وروسته رسول الله صلی الله عليه وسلم له کوټې نه را ووت او

داسې یې وویل: یو چا پسې ځو د چا سپرلۍ چې سم له لاسه تیاره وي هغه دې له مونږ سره روان شي، ځینې کسانو اجازه ورنه غوښتله چې زمونږ سپرلۍ د مدینې په عوالي نومي ځای کې دي که ستا خوښه وي مونږ به یې راولو، رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: نه، د چا سپرلۍ چې حاضره وي هغوي دې له مونږ سره لاړ شي، رسول الله صلی الله علیه وسلم له خپلو ملګرو سره روان شولو او له مشرکینو نه مخکې بدر ته ورسېدل، مشرکان هم بدر ته راغلل، رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: داسې جنت ته چې پلن والی او سوریې د اسمانونو او ځمکې د پراخوالي په اندازه دی ور ودانګئ او ورپورته شئ، انس ابن مالک وایي: د عمیر بن الحمام په نوم یو انصاري صحابي وویل: ایا د ځمکې او اسمانونو په اندازه یې سور او پراخوالی دی؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: هو، دغه صحابي وویل: بخ بخ، دا کلمات د خوشحالۍ او حیرانتیا په حالت کې ویلی شي، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل: ولې دې بخ بخ وویل، نوموړي صحابي وویل: د الله جل جلاله استازیه! یوازې ددې لپاره مې وویل چې الله جل جلاله ما د جنت له او سېدونکو نه وګرځوي، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل: ته دې جنت له او سېدونکو نه یې، نوموړي صحابي یوڅو کجورې او خرما له خپل تبراق او چانتې نه راووېستلې د هغو په خوړلو یې پیل وکړ، له دې نه وروسته یې وویل: زه چې ترڅو د دې کجورو خوراک پای ته رسوم داخو ډېر اوږد ژوند دی، هغه کجورې او خرما یې وغورځولې له کافرانو سره تر هغو و جګنېد ترڅو شهید شولو. (صحیح مسلم (۳/ ۱۵۱۰) ۱۴۵ – (۱۹۰۱).)

**د دلیل څرګندونه:**

له دې حدیث نه دلیل داسې څرګندیږي چې رسو الله صلی الله علیه وسلم د بد ر په غزا کې صحابه کرامو رضي الله عنهم ته داسې امر وکړ چې په یو صف کې برابر چې یو له بل نه وړاندې نه وي ودریږي چې له همدې امله به یې هغوي په نېزه سره سمول ترڅو یو کس هم په نورو وړاندې نشي، کله چې عمیر رضي الله عنه د جنت فضیلت واورېد له صف نه وړاندې شولو او په دښمن یې په تنها او یوازې ډول سره برید وکړ او د هغوي په صف کې ور ننوتلو، نبي صلی الله علیه وسلم د هغه په عمل څه انکار ونه کړ سره له دې چې پدې پوهېده چې د کړنې پایله یې یقینا وژل کېدل دي.

نوربیا............

۱ برخه

مولوي سيال

# داسلامي تهذيب

## څو بيلکې

**تهذيب** :دلغوي معنى په لحاظ ديوشئ سمون اوحسن ورکولو ته ويل کيږي ، اوپه اصطلاح کې په تولنيزو چارو کې دخويونو او عادتونو سمولو ته وايي.

اسلامي تهذيب داسلا م دمقدس دين يوه غوره اومهمه ځانګه بلل کيږي ، چې په دې ځانګه کې دمسلمانانو ترمنځ دروابطو اوتعلقاتو دسمولو اوپه دنياکې دښه ژوند تېرولو لپاره لاري چاري بيانيږي ، اسلام يوازي دعقائدو ،عباداتو اومعاملاتو نوم نه دى ، بلکې اسلام يوداسي کامل دين دى، چې دهيڅ کومي ضروري خبري کمى په کې نه شته ، ځکه چې الله تعالى له مور اوپلار نه هم زيات شفيق اومهربان ذات دى ، اويوشفيق هيڅ کله هم دخپلوماتحتو په وړاندي ددوى دفايدي او ضرورت خبره نه دريغوي ،

الله تعالى په قرآن کريم کې اوياهم دخپل سپيڅلي استازي پرژبه ددنيا د ژوند دهري زاويي لپاره په پوره توګه قوانين اوآداب ښودلي دي ،لکه دقرآن کريم دسورة المجادله په لسم آيت کې فرمايي : (ياايهاالذين آمنوا اذا قيل لکم تفسحوا فى المجالس فافسحوا يفسح الله لکم واذا قيل انشزو فانشزو ) ژباړه :اى مؤمنانو! چې کله تاسو ته وويل شي : پراخي وکړئ په مجلسونوکې نو تاسو پراخي کوئ اوالله به تاسو لره پراخي درکړي او چې کله درته وويل شي پورته شئ نو پورته کيږئ ،

يعني که چيري تاسو ته ددغه ځاى څخه دپورته کيدلو حکم وشونو بيا تاسو پورته کيږي، خواه که کوم بل ځاى دکښيناستلو حکم درته وشي اوکه له مجلس نه دوتلو ، نو په هغه عمل وکړئ

په دې آيت شريف کې دمجلس دځينو ادابو بيان دى ، لمړى داپه ګوته شوي چې دمسلمانانو لپاره په کارده چې په کوم مجلس کې ناست وي اونور خلک راشي نو مسلمانان دې دهغوئ لپاره دځاى ورکولو

کوشش وکړي ، اودوهم داکه چېري په مجلس کې په تنګ کښیناستو سره هم پراخي نه راتله نو که دمجلس امیر ځینوکسانوته ووایې چې تاسو ولاړ شئ اوخپل ځای نورو کسانوته پرېږدئ ، نو دي داکسان پورته شي او هغه نوردي په هغه ځای کښېني

همداراز داحادیثو ګڼ شمېرببابونه داسلامي تهذیب په اړه داسلامي شریعت اونبوي ص احادیثوپه کتابونوکې شته ،چې دبېلګي په توګه موڅواحادیث ستاسو مخي ته ږدو

**اول** : رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایې : کله چې له ملګرو سره په ګډه خوراک کوئ نو دوې کجوري په یوه وار مه پورته کوئ ، ترڅو چې له ملګرو څخه دي اجازه نه وي ترلاسه کړي (اضافات مخ ۳۲۳ متفق علیه) **وګورئ** ! په دې حدیث کې په ډېره معمولي خبره چې هغه عدم اذن دی او دخلکو ناخوښه کیدل دي ممانعت راغلی .

**دوهم** : حضوراکرم صلی الله علیه وسلم فرمایې : کله چې یوڅوک هوږه یا پیاز وخوري هغه دې زموږ ټولنې ته نه داخلیږي - الحدیث متفق علیه - **وګورئ** ! دلته هم ونورو خلکو ته دمعمولي تکلیف ور رسولو له امله منع کړي

**دریم** : فرمایې : دمیلمه لپاره جائز نه دي، چې له کوربه سره دومره وخت واوسي ترڅو هغه ورڅخه تنګ شي - متفق علیه - په دې حدیث کې له داسي خبري منع راغلي ده چې دنورو خلکو دزړه دتنګۍ لامل جوړیږي

**څلورم** : له حضرت عبدالله بن عباس او حضرت انس رضی الله تعالی عنهم فرمایې : کله چې دمریض پوښتنې ته ورشئ نوله هغه سره ډېر مه کښېنئ لږ کښینئ او ولاړ شئ ! - رواه رزین والبیهقي

وګورئ ! په دې حدیث کې څومره دقیق رعایت شوی دی ولي چې په بعض اوقاتوکې له مریض سره ډېر کښیناستل دمریض دتکلیف سبب جوړیږي ، ځکه کله هغه دپښو غزولو یا پریوتلو یاله چاسره دراز دخبرو کولو ضرورو ت لري

البته که په ډېرو کښیناستلو کې مریض ته راحت وي ، نو بیایې حکم له دې صورت څخه بیلیږي

**پنځم** : حضور اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایې : کله چې تاسو له نورو سره یوځای خوراک کوئ نوکه ماړه شئ هم نو له ډوډۍ څخه لاس مه ایسته کوئ ځکه چې کله په دې کارسره بل خوړونکي ته شرم پیداکیږي اوښایې هغه دي له مړیدو مخکي له ډوډۍ څخه پرشا شي - رواه ابن ماجه -

له دې حدیث څخه داثابتیږي چې داسي کاربایډ ونه شي چې دبل چا دمعمولي شرم لامل جوړشي ،

**شپږم** : پـه احـاديثو کې راځـي چې يوځـل حضـرت جـابر رضی الله تعالی عنـه درسول الله صلی الله عليـه وسلم کورتـه راغـی اودروازه يې وټکولـه ، رسـول الله صـلی الله عليـه وسـلم ورتـه اواز وکړ څوک يې؟ حضـرت جـابر رضـی الله تعـالی عنـه ورتـه وويل : زه يـم ! حضـور صلی الله عليـه وسلم پـه ناخوښـي سره ورتـه وويل : زه يم ! زه يم !

دپورتني حـديث څخـه معلوميږي چې خبـري بايـد پـه ډيـره صـفا توګـه سـره وشـي ترڅـو چې دوهـم کـس پـه هوساتوګه وربانـدي ځان پوه کړي

**اووم** : حضوراکرم صلی الله عليه وسلم فرمـايي : د دوو داسـي کسـانو تـرمنځ چـې قصـدا لـه نـورو خلکـو جـلا ناسـت کښيناستل جائز نـه دي – ترمـذي – لـه دې حـديث څخـه ښکاري چې داسي حرکت بلکل نه دی په کار چې دنورو خلکـو دطبعيت دګډودۍ لامل شي ،

**اتم** په احاديثو کې راغلي : رسول الله صلی الله عليه وسلم ته چې به کله پرنچې ورتـه نوخپله مبارکه خوله بـه يې پـه لاس يا جامـه سـره پټولـه او اوازبـه يې ښکته کـول – ترمـذي – لـه دې حـديث څخـه معلومـه شـوه چـې پـه مجلـس کـې ناسـتو کسانوسره دومره رعايت په کار دی چې له لوړ اواز څخـه دي هم متأثر نه شي

**نهـم** : لـه حضـرت جـابر رضی الله عنـه څخـه روايـت دی فرمايي : موږ صحابه کرام رضی الله عنهم چې بـه کلـه درسول الله صلی الله عليه وسلم مجلس ته راتلو نو هرملګری چې بـه مجلـس کې کوم ځای ته ورسيد هم هلته به کښيناست – ابوداود–

يعني خلک به يې په مشقت کې نـه اچـول ترڅـو مجلـس قرارپاتي شي ، ځکه دادمجلس له ادابو څخه ده

**لسم** :حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهما فرمـايي : چې دجمعې دغسل دضروري کيـدلو خـاص لامـل داؤ چـې داسـلام پـه ابتـداء کـې اکثـره خلک غريب او مـزدور کـاره وو ، خيرنـي جـامي بـه يـې اغوسـتي وي چې بدبوی بـه تـرې پورتـه کيـدو چې لـه املـه يې خلکوتـه تکليف پيښيدو نوځکه دجمعې دورځي غسل ضروري شو

درنـو لوسـتونکو ! کـه پـه مجموعـــه توګـــه دقـــرآن اواحاديثو پر دلايلو غـور وکـړو نو راتـه معلـوم بـه شي چې پـه اسلامي شـريعت کـې دهرهغـه څه چې دخلکو داذی او تکليـف سبب جـوړيږي منـع ضـروري بلـــل شـــوي ده او اســـلامي شريعت ورتـه خـاص پاملرنـه کـــړي ، بايـــد داســـلام ديـــن مطالعه کړو ترڅـو وکولای شو چـې پـه هرډګـر کـې داسـلامي شـريعت دقـانون موافـق اقـدام وکړو .



# امت دین و امت سیاست

دکتور محمد عماره

در ادبیات سیاسی نوین، واژه‌ی «امت» معنای مشخصی دارد که بر اساس آن‌چه در آثار و تولیدات فکری می‌بینیم، به پژوهش پیرامون نژادها و ملت‌ها از لحاظ پیدایش، پیشرفت، شرایط، ویژگی‌ها و تقسیماتشان می‌پردازد.

اما در آثار قدیم عربی اسلامی، »امت» به جماعتی گفته می‌شد که بر پایه‌ی برخی روابط و پیوندها و بدون در نظر گرفتن نوع این روابط و پیوندها، با هم ارتباط دارند. در مثال، کسانی را که موسی (علیه السلام) بر سر چاه آب در سرزمین مدین دید، یک امت بودند» : و لما ورد ماء مدین وجد علیه أمة من الناس یسقون» (قصص/۲۳)، یا هیأت، شورا یا حزبی که برای انجام فرض کفایی امر به معروف و نهی از منکر اقدام می کند، یک امت هستند : «ولتکن منکم أمة یدعون الی الخیر و یأمرون بالمعروف و ینهون عن المنکر و اولئک هم المفلحون» (آل عمران/۱۰٤)

همه‌ی پیروان رسالت‌های آسمانی در طول تاریخ از دوران آدم (علیه السلام) تا بعثت محمد صلی الله علیه وسلم با وجود تنوع در شریعت‌هایشان، یک امت الهی مشترک تشکیل داده‌اند : «وإن هذه أمتكم أمة واحدة و انا ربکم فاعبدون» (انبیاء/۹۲)

در ادبیات سیاسی عصر نبوت نیز استفاده از اصطلاح «امت» نزدیک به استعمال قرآنی آن است؛ گرچه دارای چند معنا و شاخصه بود، ولی در موارد بسیاری این اصطلاح یک گونه به کار می‌رفت. وقتی نخستین قانون اساسی اولین حکومت عرب‌های مسلمان را در یثرب (مدینه‌ی منوره) پس از هجرت رسول‌الله (صلی الله علیه وسلم) از مکه به مدینه مطالعه کنیم، درمی‌یابیم این قانون، که منابع تاریخی و میراثی آن را صحیفه یا کتاب نامیده‌اند، واژه‌ی امت را گاهی در عرصه‌ی دین و گاهی در زمینه‌ی سیاست به کار برده است، ولی در همان معنای جماعت. شهروندان این دولت نوپا از مهاجران عرب مکه و انصار مدینه یا همان قبایل ساکن

در یثرب همانند اوس و خزرج و هم‌پیمانانشان تشکیل شده بود.

هنگامی که رسول‌الله (صلی الله علیه وسلم) مهاجرت کرد، هنوز همه‌ی قبایل یثرب، اسلام را نپذیرفته بودند، ولی او این حکومت را پایه گذاشت و این قانون را تدوین نمود.

آنان که مسلمان شده بودند، انصار نامیده شدند و با مهاجران، امتِ دین جدید را تشکیل دادند. با اینکه بخش‌هایی از قبایل یثربَ بر آیین یهودیت باقی ماندند و اهل کتاب نام گرفتند، ولی در چارچوب «شهروندی» بخشی از «امت دین واسلام» و تابع دولت عربی نوپا گردیدند و با هم «امت سیاست» را تشکیل دادند.

از همین جاست که می‌بینیم ـ آن گونه که ابن هشام در کتاب سیرت خویش نقل کرده است ـ این قانون، انصار و مهاجران را یک امت می‌داند که روابط، حقوق و وظایف برابری دارند. هم‌چنین مشاهده می کنیم که این قانون، مؤمنان و یهودیان را یک امت می‌داند که بی‌توجه به اختلافات دینیشان، امت سیاست و رعیت دولت هستند؛ «مؤمنان دینشان را دارند و یهودیان دین خود را، و همگی در نیکی و یاری برابرند.«

شایسته است به یاد آوریم آن تسامح و تساهلی که پیامبر دین اسلام آن را به شکلی انحصاری تأیید، تدوین و اجرا نمود، حتی در آن زود هنگام که خطرات بسیاری او و خانواده‌اش را فراگرفته بود. فراتر از این، باید توجه کرد آن یهودیانی که با مؤمنان در یثرب امت سیاست و شهروندی حکومت جدید و نوپا را تشکیل دادند، همان عرب‌هایی بودند که پیش از اسلام به آیین یهودیت درآمده بودند. منظور همان کسانی است که از اوس و خزرج به یهودیت پیوستند.

اینان از نظر نژادی عرب بودند، نه آن عبری‌هایی که قبایلشان بیرون از یثرب سکونت داشتند و در ائتلاف با عرب یثرب درآمدند. از طریق این گونه ائتلاف‌ها بود که قانون اسلامی، یهودیان عبری را در مجموعه حقوق و وظایف قرار داد و این ادامه داشت تا هنگامی که خیانت کردند و در طی جنگ احزاب با مشرکان قریشی هم دست شده و دسیسه کردند و این شرافت را از دست دادند. و پس از آن هیچ پیوندی با مسلمانان نداشتند و از دایره‌ی امت سیاست و شهروندی خارج شدند، همان گونه که در اصل بخشی از امت دین هم نبودند.

بدین گونه می‌بینیم اصطلاح یکی است، ولی محتوا متعدد می‌باشد و با تحولات زمانه، معنا و مضمون توسعه می‌یابد، حتی واژه‌ی «امت» در قرآن گاهی به معنای دین، گاهی بخشی از مردم و در مواردی به معنای وقت و زمانه است. امری که می گوید زمینه‌ی ورود یک اصطلاح، دلیلی برای تعیین معنای مراد آن است.





## ذبیح الله مجاهد

# څوشیبې له خپل ولس سره

**قدرمن مجاهد صاحب!**

په مسنونه سلامونو او نیکو هیلو مو لمانځم، له الله څخه درته د اسلام په لار کې د لا زیاتو بریاوو غوښتونکی یم.

زما پوښتنه داوه چې ځینې فرصت طلبه ځوانان د طالبانو او مجاهد له پاک نامه څخه په ناوړه ګټه اخیستلو له عامه وګړو سره خورا بد چلند کوي، د اسلام له نظره د بې ګناه انسانانو ځورول، له هغوي څخه په زور پیسو اخیستل او هغوئ وهل او ټکول حرام دي، آیا ستاسو قیادت لدې پیښو خبرېږي او کنه؟ که خبرېږي نو ستاسو غبرګون پدې هکله څنګه وي؟

**ځواب** ـــــ وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته ! زما وروره دافغانستان اسلامي امارت دقیادت لخوا ټولو نظامي اوغیرنظامي ملګروته په کراتودپیغامونو او لائحې په توسط سپارښتنه شوې چې دخپلو مظلومو او کړېدلو خلکو سره تل داسلامي اخلاقو او عطوفت نه ډک چال چلند وکړي او په نرمه او حسنه طریقه دخلکو په وړاندې برخورد ولري ،خو داچې تاسو بیا هم دمجاهد په نامه له خلکو سره ناسم او ستوغ چلند نه شکایت لرئ، زه به ستاسو دا شکایت تر مشرانو او مسئولو ملګرو پورې ورسوم او هغو به په تکراري ډول خپل سیمیز مجاهدین دخلکو سره ښې رویې او اسلامی اخلاقو ته راوبولي او په دې اړه به دعالیقدر امیرالمؤمنین هدایات او لار ښونې چې باربار یې ټولو مجاهدینو ته په پیغامونو ،دمجاهدینو په جهادي لایحه او شخصې لارښونوکې کړي دي په کلکه سره په ټولومجاهدینو عملا تطبیق کړي ، خویو څه باید له نظره ونه باسو چې کله کله ځینې غرضي او فرصت غوښتونکې خلک دخپلو ناسمو او شخصې عقدو په وجه هم دمجاهدینو پسې ځینې تورونه تړي چې هیله ده تاسو به دهغو غرضي خلکو خبروته غوږ ونه نیسئ بلکې هغه څه چې پخپلو سترګوپې ووینئ موږ ته یې تل

دشکایت په ډول راولیږې او په دې برخه کې که دهغو سیمواو اشخاصو نومونه هم په مستند ډول راته راواستوئ چې دغه راز بدچلند دمجاهدینو لخوا دخلکو سره پکې شوی وي دابه مو دمظلومو او ځوریدولو خلکو سره او همداراز دخپل امارت سره لوی مرسته کړي وي . **ډېره ډېره مننه**

**السلام علیکم!** ذبیح الله مجاهد صیب زما پوښتنه داده که په افغانستان کې یو ځل بیا اسلامي حکومت راغی بیا به امربالمعروف او نهی عن المنکر فعال وي که نه ، او که وي نو هغسې زور به کوي که نه ؟

**والسلام**

**مننه**

**تل او کامیاب دې وي داسلامي امارت مجاهدین.**

**ځواب ــــ وعلیکم السلام !** که په هیواد کې اسلامي حاکمیت منځ ته راځې نو له خپلو ټولو لازمو شعبو سره به منځ ته راځي ، امربالمعروف او نهی عن المنکر دهر اسلامی حاکمیت او په عموم کې دټول مسلمه امت دنده ده ، خو دامربالمعروف او نهی عن المنکر په طرز او رویش باندې به کاملا غور کیږې او کوشش به داکیږې چې معروف په حسنه طریق سره په خلکو عملې شي اوهمدا راز دمنکراتونه هم په خورا حکمت سره خلک وژغورل شي اوپه دې لاره کې به له هیڅا سره هم دبې ځایه زور زیاتي نه کار نه اخیستل کیږې .

**السلام علیکم !**

مجاهد صیب زما پوښتنه داده چې طالبان ولې دعامو خلکو کورنوته ورننوځي ،کله زور نه کار اخلي او کله غوصې سره خلکو باندي رعب اچوي او خلکو نه شپه غواړي ؟ ............

**ځواب ــــ وعلیکم السلام !** ورورہ په هره سیمه کې دخپلې سیمې طالبان اوسیږي او په هغو کورونو کې ډوډۍ خوري یا شپه تیروي چې اعتبار پرې ولري چې کومه ستونزه نه ورته پیښیږې او هغه کوروالا خلک د جهاد او مجاهدینوسره مینه هم ولري ، بیا دجګړو او عملیاتو په وخت کې چې موسم تود وي مجاهدین اکثره داسې ځایونو کې شپې تیرې وي چې هغه یواځې اوتنها ځایونه وي ، خو کله کله داسې پیښیږې چې دمجبوریت په اساس یا دلوږې له وجهې یا دډیرې ستومانۍ له وجهې په شپه کې هم له خلکو نه ډوډې یا بل داړتیا وړشیان وغواړي ، او داټول کارونه دیو مجبوریت په اساس کیږي ،طالبانو چې خپل ژوند دمرګ خطر ته اچولی زموږ او تاسو دمشترک دین او هیواد دآزادۍ لپاره ده او په دې کار کې ټول سره برابر ونډه او مسؤلیت لرو ،نو تاسو کوشش وکړې چې له مجاهدینو سره

مرسته وکړي ځکه اسلام او هیواد مو سره شریک ده او دکفر ضرر مجاهدینو او تاسو دکلي کور خلکو ته برابر رسیږي نو حتما به لږستونزه وی خو یو شي چې ډیر واضح ده هغه داده چې مجاهدین له هغو خلکو سره ناسته پاسته کوي چې پوره مخلص خلک وي او اعتبار پري ولري ، او له مجاهدینو نه هم هیله کیږي چې په خپل تګ سره خلکو ته امنیتي ستونزې جوړې نه کړي ، ځکه دښمن ډیر بي رحمه ده او عام خلک هم ځوروي او په تکلیفوي یې، په دې اړه مجاهدینو ته لازم هدایات هم شوي او بیا به هم وشي . مننه

**سلامونه او نیکې هیلې !**

۱ .زما پوښتنه داده چې کله امریکایان ووځي نو هغو خلکو چې اسلامی امارت سره شرعی مشکل نلري خو سیاسي (پولیټیکل) مخالفت لري نو ایا تاسو به داسي یو پولیټکل پروسز جوړ کړئ چې هغه نا راضه وروڼه هم ستاسو سره په یو صف کې ودریږي دوطن په بیا رغونه کې ، ځکه هغوی هم افغانان دي صرف جنګ دحل لاره نه ده او ددې مشکل نه همیشه زموږ دښمن شومه ګټه پورته کړي ده؟

**ځواب ـــ** وروره اسلامی امارت له هرهغه چاسره ګډ کار ته ژمن ده چې له شریعت سره ستونزه ونلري ، زموږ لپاره اصل شریعت ده که هرڅوک له موږ سره په شریعت توافق ولري نو په چوکیو او واک کې موږ له هیڅ افغان سره ستونزه نه لرو ، زموږ دټولو زحمتونو هیله او آرمان هغه یو واقعا اسلامی نظام ده ، کله چې اسلامی نظام قایم وي نور خو مشکل نه پاتي کیږي او دمملکت هرڅه به دشریعت له احکامو سره برابر پرمخ ځي نو ولي به اسلامی امارت له چا سره بیا جګړه او اختلاف کوي په داسي حال کې چې بیا دجګړې ټول مجوزات له منځه ځي او زموږ هغه دنده پوره کیږي چې الله تعالی راته سپارلي ده چې هغه اسلامی حاکمیت ده ، نو هرهغه کسان چې دشرعي نظام ترسیوري لاندې هر راز فعالیت غواړي چې هغه داسلامی احکامو سره په تضاد کې نه وي دا دهغو حق ده او بایدزمینه ورته برابره شي او مرسته یي وشي ، ترڅومو وران هیواد بیرته په شریکه سره اباد او ښیرازه کړو یوه خبره چي باید واضح کړم هغه دا ده چي همدا اوس دافغانستان اسلامي امارت په داسي لارو چارو کار شروع کړی چې ټول مسلمان افغانان مشترک کارته وهڅول شي او په یوصف کې سره منظم کړل شي او دیو ه هدف لپاره ټول په ګډه او دورور ولۍ په فضاکې کار سره وکړو دهمدې کار دپاره یوه مستقله اداره تشکیل شوې چي مثبت اثر به یې تا سو په راتلونکي کې ووینئ ان شاء الله .

اجمل جلال

# د الاقصی پر ورانډې نړیواله لوبه

د اسرائیلو د مسکن جوړولو وزیر (یوري آریل) ویلي چې دوی به د الاقصی جومات وران او پر ځای به یې یو سلیماني معبد جوړ کړي، ځکه چې دا ځای په اصل کښې د یوه یهودي معبد ځای دی، چې وروسته بیا پرې جومات جوړ شوی دی.

یوې اسرائیلی راډیو ته په خبرو کښې، آریل ویلي دي، چې د الاقصی جومات پر ځای د یهودي معبد جوړول د تورات غوښتنه ده. هغه هیله وښوده، چې راتلونکي ټاکنې به پر دولت فشار راوړي، چې د سلیماني معبد جوړولو کار پیل کړي او دولت به مجبور شي چې د اسرائیلي اتباعو غوښتنې ته لبیک ووایي.

دا څرګندونې په داسې حال کښې کیږي چې د صهیوني رژیم وحشیانه اعمال هره ورځ سختیږي، فلسطینیان خپلو کورونو پرېښودلو ته مجبوروي او د ژوند شرایط هره ورځ پرې سختوي. څو ورځې مخکې یې د الاقصی جومات دروازه پر ځوانو مسلمانانو وتړله او د لمانځه د اداء کولو څخه یې منع کړل.

د اسرائیلو وروستیو بریدونو سره یو ځای، د غزې د غربې برخې له اوسېدونکو څخه، چې شمېر یې سلو زرو تنو ته رسیږي، و غوښتل شول چې خپل کورونه پرېږدي او د بیا راګرځېدو لپاره د اسرائیلي حکومت دوهم فرمان ته منتظر شي.

د سلیماني معبد جوړولو پلان د فلسطیني خاورې د اشغال له لومړنیو ورځو طرح او عملي کیږي، سربېره پر دې چې د الاقصی جومات د یونسکو تر حمایت لاندې دی، بیا هم اسرائیلي رژیم د دې جومات د ورانولو عملي اقدامات په ډېرې چټکۍ مخ

ته بيايي، آن تر دې چې د الاقصى جومات لاندې له چا ودېدونکو توکو ډک تونلونه ايستل شوي.

نړيوال او په ځانګړې توګه غربي هيوادونه چې د اسرائيلو دا ټول جنايات ويني، پټه خوله پاتې دي، تر څنګ يې د يوې نوې ډرامې له لارې د فلسطين د بيا ورشنې او اسرائيلي ورانکاريو او يرغلونو ته د حقوقي بڼې ورکولو په موخه د يوه "فلسطيني دولت" د را مينځ ته کېدو چيغې وهي. زاړه ښکېلاک، انګليس، د دې کار لپاره لومړی اقدام وکړ او په خپل پارلمان کښې يې فلسطيني دولت په رسميت وپېژاند، ورپسې سويډن او بالآخره ټولې اروپايي اتحاديې د يوه فلسطيني دولت د را مينځ ته کېدو غوښتونکې شوه.

د فلسطيني دولت د را مينځ ته کېدو هيله، که په ظاهر کښې څومره هم پاکه او د منلو وړ هيله و بلل شي، اما په اصل کښې د زاړه استعمار او امريکا نوې ډرامه ده، چې د فلسطين د خلکو او خاورې لپاره به خطرناکې پايلې ولري.

که له دې خبرې تېر شو، چې د اسرائيلو د وحشتونو په مقابل کښې، انګلستان، سويډن او ټولې اروپايي اتحاديې هيڅ هم نه دي کړي، حتى په همدې هيوادونو کښې قوي صهيونستي لابي ګروپونه فعاليت لري، چې د دولتونو تر ملاتړ لاندې دي، او يو اځې دې خبرې ته را شو، چې د يوه فلسطيني دولت د را مينځ ته کېدو معنى څه ده؟ ځواب يې په څو ټکو کښې خلاصه کېداى شي: يوې لورى د حماس ډله ده، چې د فلسطين له خاورې دفاع کوي، اما د نړيوالو په نظر يوه تروريستې ډله ده، چې له فلسطين څخه د دوى دفاع، ترور او وحشت ګڼل کېږي، نو د يوه حکومت د اداره کولو حق په طبيعي توګه نه لري.

تر څنګ يې د فتحې ګوند دى، چې تل د خپلو خلکو په ټکولو او د اسرائيلو د ګټو په تأمين بوخت دى. د فتحې ګوند د خپل تاريخ په اوږدو کښې، د فلسطين لپاره د خير يو کار هم نه دى کړى، بالعکس، د خپلو خيانتونو په پايله کښې يې د فلسطين خاوره اسرائيلو ته ور وبخښلې. د فتحې ګوند تل، د هغو فلسطينيانو د ټکولو او بندي کولو کوښښ کړى چې د اسرائيلو پر ضد په مظاهراتو کښې ګډون کوي.

هغه ژورناليستان او عکاسان يې زورولي او وهلي دي چې د اسرائيلو پر ضد فعاليت کوي. په همدې دليل د فتحې ګوند، د نړيوالو په نظر کښې تروريستي نه بلکې منځلارې ډله ده، او که کوم دولت جوړېږي هم، د چارو واګې به يې د فتحې ګوند ته په لاس ورکول کېږي.

له ۱۹۹۴مه تر نن ورځې، فلسطيني )حکومت( ته د

"فلسطيني اداري" اصطلاح کارول کيږي، چې د نړيوالو حقوقو له نظره د پوره حاکميت درلودونکي نه ده او د يوه دولت معنی نه لري، د ۱۹۹۴ کال تړون پر اساس فلسطيني اداره د يوه فلسطيني دولت په را مينځ ته کولو مکلف شوې وه. که څه هم فلسطيني اداره د غزې او غربي شريعة پر سيمو د حاکميت ادعا کوي، خو په حقيقت کښې حماس هم پر غزه حاکم دی چې د اسرائيلو او نړيوالو لپاره د زغم وړ نه دی.

د دې لپاره چې د حماس حاکميت ته د پای ټکی کيښودل شي او پر هغو خاورو چې تر اوسه هم د فلسطينيانو د اوسېدو سيمې دي، د فلسطيني ادارې حاکميت مطلق و ګڼل شي، بايد دا اداره په ظاهر کښې د يوه مستقل دولت بڼه غوره کړي. کله چې مستقل دولت را مينځ ته شي نو د فلسطين په اړه به تصميم نيونکی دولت وي او بله هره ډله، چې د دې دولت تر حاکميت لاندې سيمو کښې د اسرائيلو پر ضد هر ډول فعاليت خصوصاً وسله وال فعاليت وکړي، هغه به اغتشاش جوړونکي او شر خوښوونکي ډله وبلل شي، او همدا دولت به مکلف وي چې له خپلې خاورې د هغو ډلو مخه ډب کړي چې د اسرائيلو پر ضد فعاليت کوي.

همدارنګه، د اسرائيلو دولت به، چې نړيوال حمايت لري، د لوبې اصلي ګټونکی وي، ځکه چې له يوې خوا په خپله فلسطين کښې د حماس ډله تر سختو فشارونو لاندې ده، د غزې حالت د زغم وړ نه دي، انسانان وږي، بې کوره او بې روزګاره دي، هر کال يو لوی شمېر فلسطينيان له خپلې خاورې وځي او د يوه هوسا ژوند په لټه کښې نورو هيوادونو ته کډه کوي. له بلې خوا، په سيمه او نړی کښې داسې هيواد نشته (پرته له ترکيې، چې د هغې رول هم دومره اغيزمن نه دی) چې د فلسطين د خلکو له غوښتنو دفاع وکړي، او د حماس تر څنګ و درېږي. عربي هيوادونه تقريباً ټول، يا د اسرائيلو ملاتړي دي او يا يې پر حالاتو سترګې پټې کړې دي.

په همدې دليل، که د کوم نوي تړون د لاسليکولو له لارې د يوه فلسطيني دولت د را مينځ ته کېدو اراده را مينځ ته شي نو په پايله کښې به يې اسرائيل، د اشغال شوو خاورو اصلي څښتن وګڼل شي، او د نورو ځمکو د لاس ته راوړلو په فکر کښې به هم شي. د الاقصی د ورانولو او پر فلسطيني خاوره باندې د يهوديانو لپاره د کورونو جوړولو پلانونه به قانوني بڼه غوره کړي او هر څوک چې د دې اقداماتو پر ضد پاڅون وکړي هغه به تروريست او شر جوړونکی و بلل شي او پر ضد به يې ټول يو لاس مبارزه وکړي.

میوند سادات

# شپني عملیات

## ولس ته دنوي حکومت لویه ډالۍ

په کابل کي دنوي ایتلافي حکومت پیل دافغانستان دخرځلاو دقرار داد په لاسلیک او دشپینو عملیاتو په بیا پیل سره پیل شو، دعین وغین دګډوله رژیم دانتصاب سره دکرزي دکرغیړني دورې مظالم نه یوازي تمدید شول، - البته دکرزي په وروستي کال کي شپني عملیات څه محدود شوي وو- بلکي سربیره پر هغو دهیواد په مختلفو سیموکي یو وار بیا شپنیو وحشي عملیاتوزور واخیست، دیرغلګرو او داخلي عسکرو له خوا بیاد طالب په نوم دملکي هیوادوالو دوژلو، ژوبلولو، نیولو او شړلولړۍ پیل شوه.

په نژدې تېرو ورځو کي په ځینو سیمو کي دنیوا کګرو ځواکونو او ایتلافي رژیم دعسکرو له لوري پر ولس میشتو سیمو پراخ بې رحمانه عملیات ترسره شول چي دچاپو ځپلو سیمو څخه یوه هم دننګرهار مجاهد پر وره خاوره ده.

دډسمبرپه دوهمه نیټه دشپې له خوا یرغلګرو او داخلي ځواکونو دننګرهار ولایت دخوګیانو ولسوالۍ دمیملي پرسیمه وحشیانه چاپه پیل کړه، چاپه چي دډسمبر په دریمه ورځ لا هم روانه وه خلګو ته پکي ډیر زیات زیانونه ورسیدل، یرغلګرو سل(۱۰۰) تنه ملکي هیوادوال چي سپین ږیري او ماشومان هم پکي وو بندیان کړي، څلور تنه ولسي وګړي شهیدان کړي او دتلاشي پرمهال یې دښځو ګېڼې او نغدي پیسې غلاکړي دي.

همدا راز تردې چاپې یوه ورځ مخکي هم اشغالګرو عسکرو دافغان

پوځیانو په ملتیا دیادي شوي ولسوالۍ دوزیرو سیمه کې دچاپې پرمهال دوه تنه ولسي وګړي شهیدان کړي اواتیا(۸۰) تنه ولسي وګړي یې دبندیانو په توګه له ځان سره وړي دي .

دنومبر په ۲۵ مه بیا د نازیانو ولسوالۍ په سپین کمر ژي سر سیمه کې اشغالګرواو داخلي عسکرودعملیاتو پرمهال بمبار کړی، دځایې خلګو په وینا په دغه بمباري کې دښځو اوماشومانو په ګډون اووه تنه ملکي هیوادوال شهیدان شوي اودوه کسان ټپیان شوي دي.

همدا رنګه دنومبرپه څلورمه دیرغلګرواوګډوله بلواک رژیم عسکروپه ګډو عملیاتوکې دچپرهار ولسوالۍ په زغوسیمه کې هیوادوال ډیر کړولي دي ، دعیني شاهدانو په وینا یرغلګروپه دې چاپه کې هم سل(۱۰۰) تنه ملکي هیوادوال بندیان کړي ، کورونه یې تلاشي کړي او دوه تنه ولسي وګړي یې شهیدان کړي دي.

شپني عملیات \ شپنۍ چاپې هغه ډارونکې اصطلاحات دي چې دهیواد په لر اوبرکې واړه اوزاړه ښځینه اونارینه ټول ورسره بلد دي،یرغلګرو ځواکونو دګوډاګي رژیم اوجاسوسانو په ملګرتیا په تیرو دیارلسوکلونو کې په دې ډول وحشیانه عملیاتو کې په زرهاوو ملکي وګړي شهیدان اوپه لسهاوو زره بندیان کړي دي.

په شپنیو عملیاتو کې کورونه اوبشپړ کلي له منځه تللي ، ښځې ، ماشومان ،بوډاګان اوځوانان په انفرادي اوډله ییزه توګه وژل شوي ، تورسري اوکوچنیان په سپیو داړل شوي ، کافر عسکربوټونه په پښودسپیو سره مسجدونو ته ننوتلي ، قران شریفونه یې تلاشي کړي ، پرمځکه یې غورځولي او....چې په یادولوېي وعاملینو ته دانسانیت پر ژبه دلعنت ، لعنت ، لعنت الفاظ تکراریږي.

دشپینو عملیاتوانسان ضد ، قانون ضد ،حقوق ضداوتمدن ضد جریان ته په پام سره ډیره دتاسف وړده چې دمفکر ولسمشر !! تفکر دخپل ولس سره پردې ډول وحشت اوبربریت نه یوازي دتائید بلکې دملاتړ مهر لګوي.

نو ! دهغه ولس دي خدای جل جلاله مل شي چې دمترقي مفکر یې په وژلواو کړولو دیوې یکۍ خوا نه بدیږي اوپه تفکر سره یې لاس تړلی داستعمار خولې ته سپاري.امین !

## افغان انګلیس څلورم جنګ

# او دانګرېزانو څلورم ستر شکست

حسن زوی

داسلام او مسلمانانو پرضد اعلان شوې جګړه چې ورته د ۵۰ نه زیاتو غربي هیوادونو اتحاد جوړ او په ۲۰۰۱ کې پر افغانستان دیرغل او اشغالولو نه په داسې حال کې عملاً پیل شوه چې ددې جګړې مشري امریکا کوله او برتانیه یې ترټولو ستر اتحادي و.

کابو یوه پېړۍ وړاندې چې برتانیه دنړۍ ترټولو ستره امپراتوري وه او دافغانانو شمېر او مادي ځواک ورسره دپرتله کېدو وړنه و، دې سترې امپراتورۍ دلږو او دوسایلو په لحاظ دکمزورو افغانانو په مقابل کې د ۱۸۴۲، ۱۸۷۰او ۱۹۱۹ په درې سترو جنګونو کې دداسې شرمونکو شکستونو سره مخامخ شوه چې له امله یې نورو اشغال شویو هیوادونو ته هم دبرتانې پرضد دپاڅونونو جرأت ورپه برخه شو؛امپراتوري یې رنګه او ستره متحده برتانیه بېرته په کوچنۍ برتانې بدله شوه.

په افغانستان کې دبرتانې دا ستر شکستونه دومره پخواني ندي په رومبني یې څه دپاسه یوه نیمه اوپه وروستي یې ایله نېږدې یوه پېړۍ تېره شویده خو تعجب دی پر برتانویانو چې یو په بل دادرې واره شکستونه یې څنګه هیر او یو ځل بیا یې پر افغانستان یرغل کولو ته زړه ښه کړ؟!

نه! څه وایم برتانویانو هیڅ ندي هېر کړي خو دا چې په غریب ،دعصري وسایلو او وسلو نه بې برخې ، جنګ ځپلي افغانستان باندې لویدیځ دهغه امریکا په مشرۍ کې یرغل کاوه چې په دې مادي نړۍ کې ترټولو ستر او نه ماتېدونکی ځواک ګڼل کېدلو نو برتانویانو دافغانانو نه دخپلو نیکونو دغچ اخستلو او په سیمې کې دامریکا سره ښکېلا کې پروژو او شیطاني شومو پلانونو کې دګډون دابښه موکه وګڼله نو ځکه دوخت

لومړي وزیر ټوني بلیر نه یوازې دا چې په ټېنګو سترګو یې پر افغانستان یرغل کولو کې دامریکا سره اوږه په اوږه دګډون پریکړه وکړه بلکې امریکا، یې دې ته وهڅوله چې له خپلې پرېکړې وروسته نشي اوپه بیړه پر افغانستان یرغل وکړي.

هغه سیمه چې تاریخ یې داتلسمې پېړۍ په وروستو کلونو کې دانګریزي لښکرو دلویې مقتل ګاه په نوم یادوي دبرتانوي فوځیانو لپاره ډېره دتوجه وړ وه او په ۲۰۰٦ کې یې دافغانستان دنورو سیمو نه کابو ټول فوځیان راټول او دبګرام نه پس داشغالګرو ترټولو سترې اډې شوراب کې پدې هیله مېشت کړل چې کوم ځای کې یې نیکونو تاریخي شکست خوړلی په هماغې سیمې کې به دسوبې بیرغونه ودروي چې دا په خپلو زیاتو مادیاتو او پر مختللو وسایلو دمغرورو انګریزانو ډېره لویه خام خیالي او دافغانانو دتاریخ نه سترګې پټول وو.

دتاریخ په اوږدو کې کله هم افغانان دنړۍ دیوزبر ځواک نه ندي ویریدلي نه یې ورته سرونه ټیټ کړیدي او نه یې دچا سلطه منلې ده ؛ دلویدیځوالو اتحادیانو دنورو غړو په څېر برتانې هم ګومان کاوه چې غریب، جنګ ځپلي او دوسایلو نه بې برخې افعانان به یې مقابلې ته دراوتلو جرأت ونکړي او نه به یې په مقابل کې دڅو ورځو لپاره هم په مقاومت جاري ساتلو وتوانېږي خو له نیکه مرغه چې دا ځل هم افغانان ددې دومره لوی دښمن نه ونه وېرېدل ؛درسنیودپوچو تبلیغاتواوزښتو زیاتو مادي او پر مختللو حربي وسایلو نه یې مرعوب نه شول اودلوړوعزایمو اولویې حوصلې سره ددې ستر دښمن مقابلط ته راووتل .

دیرغلګرو مشري چې امریکا کوله نو دجنګ اصل لوري هم همدا وخودا چې زوړ دښمن دنوو ارادو سره دې خاورې ته راغلی و نو طالب قیادت زیاته توجو هم دهمدوئ مقابلې ته وکړه هلمند ته له ورتګ سره سم دهلمند زمریانو پر برتانویانو داسې بریدونه پیل کړل چې ترې یې لار ورکه او ډېر ژر یې دمقابلې توان له لاسه ورکړ نو ځکه یې مرستې ته امریکایې لښکرې راغلې چې دې کار دبرتانویانو ورځ نوره هم پسې بده کړه ځکه چې دهلمند په څېر ځای کې دصلیبي جګړې دلومړۍ لیکې ددوه سترو متحدینو یوځای کېدل دمجاهدینو لپاره ډېر دخوښۍ زیری و ؛دا ددې دواړو دټکولو ډېره په زړه پوري موکه وه نو ځکه طالبانو دافغانستان دبل هر ځای نه دهلمند سنګرونه زیات ګرم وساتل، په سمې او غره، هرې دښتې او درې، لارې او کوڅې کې ترخونړو بریدونو

لاندې راغلل او په خپل يو ستر يا کوچني مرکز کې هم خوندي پاتې نه شول؛ دهلمند ځمکه ورته ددوئ دتمو خلاف داسې سره تبې شوه چې دوئ به پخپله هم دمرګ کنده بلله .

اصل شمېره خودېره لويه ده خوداګريزانو دخپلو اعترافاتو له مخې دلته دطالبانو سره په جګړه کې ۴۵۳ برتانويانو خپل ژوند ورکړ، ۲۴۰۰ يې ټپيان او تر ۵ زرو زيات په رواني ناروغيو اخته شول او مالي لګښتونه يې ۴۰ ملياردو برتانوي پونډو ته ښېږدې شول.

په دومره اوږد او بدناموونکي جنګ کې دښکيلتيا او يکې ددومره مالي او ځاني تلفاتو ګټه او نتيجه؟

نتيجه دا شوه چې په افغانستان کې يې په څلورم ځل ماتې خوړل هم ومنل؛ دشوراب په سترې اډې کې دامريکايانو دليدرنيک کمپ ترڅنګ دبرتانويانو دباستېن کمپ نه ددوئ رېپېدونکي بيرغ دنومبر په ۲٦ مې نېټې دتل لپاره راټول شو او زوړند غوړونه دبې شمېره ترخو خاطرو او دشکست داحساس د تور داغ سره يوځای خپل هيواد ته وتښتېدل ؛دبرتانې داڅلورم شکست داسې شکست دی چې په اړه يې برتانوي مشران له اعتراف کولو بله هيڅ لار نه لري؛ ددفاع پخواني وزير ليام فاکس وايې :دافغانستان په اړه دلويديځ

پاليسي دحماقت نه ډکه وه ؛دبرتانې پلان جوړونکي له تاريخ نه ناخبره وو ؛که تاريخ يې لوستی وای هيڅکله به يې افغانستان ته فوځونه نه وای استولي.

دبرتانوي فوځيانو قوماندان ايډيټلر وايې : زموږ فوځيان جنګ ته نه وو چمتو او نه يې روښانه تګلاره لرله.

دکال ۲۰۰٦ نه ۲۰۰۹ پورې په افغانستان کې دبرتانوي فوځيانو مشرجنرال لارډ ډنت خپل شکست مني او وايې چې زموږ فوځيان له ښې روحې نه نه وو برخمن دبرتانې مشهور ليکوال او سياسي محلل فزانک ليدويج په هلمند کې دبرتانويانو فوځې ماموريت په وينو کې پانګونه بولي او ددې هيواد ددفاع وزير وايې چې برتانيه به بيا هيڅکله افغانستان ته خپل فوځيان ونه لېږي.

ولس دې مطمئن وي دلاسپوځو له لورې دامنيتي تړون په نوم دخرڅلاو قبالې اشغالګرو ته هيڅ فايده ونه رسوي ؛ ډېر ژر به امريکايې ملکي او فوځي مشران دبرتانوي مشرانو په څېر دشکست اعترافونه پيل کړي دا اوس پدوئ ده چې ژر له دې هيواده وځي او که دلازيات شرمونکي حالت انتظار کوي .



# داسلام غزوات او سرایا

## احد جنګ

ابو ظهير

## احد کې دمیرمنو ګډون!! اوشرعي حکم!

احد جنګ کې دمسلمانانو یوشمېر میرمنو هم ګډون کړی و، په صحیح بخاري کې دحضرت انس رضي الله عنه روایت دی، چې ما داحد په ورځ حضرت عائشه رضي الله عنها او خپله مور ام سلیم رضي الله عنها مې لیدلي چې دواړو به داو بونه ډک مشکونه راوړل اوخلکو ته به یې اوبه رسولي، کله چې به مشکونه تش شول هغوئ بیا به راډکول.

په بخاري کې دحضرت عمر رضي الله عنه روایت دی، چې دابوسعید خدري رضي الله عنه مور ام سلیط رضي الله عنها هم داحد په ورځ مونږ ته په مشکېزو کې اوبه راوړې

**هم داشان په صحیح بخاري کې دربیع بنت معوذ(رضي الله عنها) نه روایت دی:**

مونږ په غزواتو کې درسول الله(ﷺ) سره تللو، خلکوته دڅکلو اوبه مو ورکولي، ټپیانو ته مو ملهم پټۍ کولي او شهیدان به مو راوړل.

دخالد بن ذکوان په روایت کې د: "ولانقاتل" لفظ له پورتني روایت نه اضافه راغلی.(ربیع وایي: مونږ په قتال کې ونډه نه درلوده) دا درېواړه روایتونه صحیح بخاري په کتاب الجهاد کې شته دي، دزیات تفصیل لپاره دفتح الباري ،٦ټوک، ٧٥مخ، تر٦٠مخ)

**په سنن ابن ماجه کې یوروایت دی، چې له رسو ل الله(ﷺ) نه پوښتنه وشوه:**

على النساء جهاد؟

**ایا پر میرمنوباندې هم جهاد شته؟**

**رسول الله(ﷺ) وفرمایل:**

نَعَم جِهاد، لاقِتَال فِيه، الحج وَالعُمرة.

هو،پرښځو جهاد شته دی ، خو قتال نه، یعني حج اوعمره( فتح الباري کتاب الحج باب حج النساء)

دبخاري شريف په کتاب العيدين کې، دام عطيه (رضي الله عنها) روايت دى چې:

مونږ په غزواتو کې دناروغانواوټپيانو درملنې لپاره به له رسول الله (ﷺ) سره يوځای وو.

ميرمنوبه يوائې اويوائې خلکو ته اوبه ورکولې دناروغانو او مريضانو دخبريې اخسته، خو په جنګ کې مخامخ يې برخه نه اخسته ،البته ام عماره (رضي الله عنها) چې کله دا وليدل چې "ابن قميه" په رسول الله (ﷺ) حمله کوونکی دی، دهغه په ليدو ورمخکې شوه، دهغه مقابله يې وکړه، چې له امله يې هغه ټپي شوه، ام عماره (رضي الله عنها) فرمايل:

زه ورمخکې شوم په ابن قميه مې بريد وکړ، خو دالله دښمن دوه زغرې اغوستې وې (البدايه والنهايه ۴ټوک ۳۴مخ ابن هشام ۲ټوک ۸۲مخ)

دعلماوو په قول دې غزوه کې يوائې ام عماره شريکه وه، په نورو ټولو غزواتو کې سيوا د دوه ميرمنو څخه دنورو ګډون داحاديثو له ذخيرې ندی ثابت اونه په کوم حديث کې جهادته دميرمنو ترغيب ورکول ثابت دي.

**ديته په پام شيخ الحديث مولانا محمد ادريس کاندهلوي (رحمه الله) ليکلي:**

دټول امت اجماع ده،چې په ميرمنو جهاد فرض ندی،مګر داچې کله کافران په مسلمانانو هجوم اويرغل راوړي او پکې دښځو ګډون ته اړ تيا اوحاجت پيښ شي (سيرة المصطفى دويمه برخه ۵۶۸مخ)

بل ښځې فطرتاً کمزورې وې، دهغوئ طبعي ضعف اوجمساني جوړښت پخپله ددې دليل دی، چې پرهغوئ جهاد اوقتال لازمول دهغوئ دفطرت اوجبلت خلاف کاردی.

**الله (جل جلاله) فرمايي:**

ليس على الضعفآءِ ولا على المرضى ولا على الذين لا يجدون

يعنې په کمزورو،ناروغانو اوپه بې وسو جهاد فرض ندی.

رسول الله (ﷺ) به په هر جهاد کې تاکيد کاوه، چې هيڅ ميرمن قتل نکړئ!يوځل رسول الله (ﷺ) يوه وژل شوې ميرمن وليده (کومه چې په تيروتنه وژل شوې وه) وې فرمايل:

ماكانت هذهِ لتُقاتِلَ

دا خو دوژلو لايق نه وه

په بخاري شريف کې دحضرت عايشه (رضي الله عنها) څخه روايت دی چې مونږ عرض

وکړ، دالله رسوله! جهاد ترنورو غوره عمل دی، ولې مونږ ښځوته په جهاد کې د ګډون اجازه نه راکوي؟ رسول الله (ﷺ) وفرمايل:

نه! ستاسې جهاد، مبرور حج دی.

**مولانـا محمـد ادريـس کانـدهلوي(رحمه الله) وايي:**

**دميرمنو په اړه اصل حکم دادی:**

وَقَرۡنَ فِي بُيُوتِكُنَّ

پخپلو کورونو کې تم شئ! بيرون مه وځئ!

ديته په پام رسول الله (ﷺ) دجماعت لمانځه لپاره دښځو تلل ندي خوښ کړي، ياعطر وهل، اويا په ښايسته کاليو کې مسجد ته دښځو له تګ نه يې په صراحت سره منع کړيده، ددي په ځای يې په کور کې دښځې لپاره لمونځ کول غوره بللی،نور هر کله چې شريعت دلمانځه لپاره مسجد ته دښځو تلل غوره نه بولي ،نودجهاد صف کې له ضرورت پرته ګډون يې څنګه غوره ګڼلی شي؟

همديته په کتو فقهاوو فتوا ورکړيده چې په لمانځه اوجهاد دواړو کې دميرمنو ګډون غوره عمل ندی! مګر دمجاهدينو دمرستې دهغوئ دخبر اخستلو، دناروغانو پوښتنې لپاره يوائې هغو مرمنو ته دتګ اجازه شته ده، چې هلته دهغوئ ورتګ دخير باعث ګرځي، نه دفتنې؛ يعنې دبوډيو ميرمنو لپاره اجازه شته دځوانو ميرمنو لپاره نه؛خو په دې شرط چې خاوند يا "ذی رحم محرم" به ورسره وي، څنګه چې په حديث کې دا راغلي، چې دهېڅ ميرمنې لپاره روانده، چې هغه دخاوند يا د"ذی رحم محرم" پرته حج ته لاړه شي، له دې وجې دځينو فقهاوو قول دادی:

په کومه ميرمن چې دمال او وس درلودو باوجود حج فرض وي، خو ميړه او يا "ذی رحم محرم" ونلري، په هغې د نکاح کول وجب دي، چې دخاوند سره يوځای حج ته لاړه شي،څو دمحرم پرته سفر ونکړي

په مسجد کې دلمانځه لپاره دښځو تګ په دې شرط جايزدی، چې دهغوی ور تلل به هلته دفتنې سبب نه ګرځي، کنه دښځو تلل حرام اوناجايزدي.

هم داسې په روغتونونو کې دميرمنو لخوا دنارينه وو درملنه اوعلاج حرام عمل دی.

دعلماوو په وينا دا دغربي تهذيب زيږنده عمل دی! دکوم بنسټ چې په شيطاني اردو اونفساني هوسونو ايښودل شوی او دانبياوو د شريعت بنسټ په عفت

اوعصمت ایښودل شوی، چا ته چې خدای (جل جلاله) عقل ورکړی دی، هغوئ دعفت اوشهوت په توپیر پوهیږي، هغه څوک چې دنفس اوشیطان غلامان دي، هغوی ته د وینا ګټه نلري، ددغسي بې عقلانو په نظر دنکاح اوزنا ترمنځ هم فرق نشته، الله اکبر! څه وخت راغی، چې دشریعت او عفت لورته بللو او دعوتولو دشهوت بنده ګان نیوکې کوي.

داحد دشهیدانو تجهیز اوتکفین:

په احد غزوه کې ټول اویا کسان شهیدان شول، لوی شمېر د انصاروو، هغه مهالمسلمانان غریبان کمزوري وو، تردې چې شهیدانو ته یې کفنونه هم پوره نکړای شول، دمصعب بن عمیر (رضي الله عنه) دکفن څادر دهغه له قد څخه لنډو، که ورته په سریې اچاو، پښې یې لوڅې پاتې کیدې، که پښې یې پټولې، سریې لوڅ پاتې کیده، بالاخر رسول الله (صلی الله علیه وسلم) وفرمایل: سر ورته پټ کړئ، په پښو یې "اذخر" (یوډول واښه دي) واچوئ (بخاري غزوه احد)

ورته پېښه دشهدانو دسردار حضرت حمزه (رضي الله عنه) سره هم وشوه، دځینو لپاره دا هم نه وو، دوه، دوه شهیدانوته یې د یو څادر کفن ورکړ، ددرې، درې شهیدان یې یوځای په یوقبر کې دفن کړل، ددفنولو په

وخت کې به یې پوښتنه کوله چې کوم یو ته د قرآن زیاته برخه یاد ده، کوم یو ته به چې اشاره وشوه هغه یې دقبلې لورته لحد کې مخکې کیښود اوفرمایل به یې:

انا شهیدُ علی هولاء یومَ القیامةِ

دقیامت په ورځ زه ددوئ په حق شاهد وایم!

رسول الله (صلی الله علیه وسلم) حکم وکړ، شهیدان دغسل پرته پخپلو وینو کې لړلي دفن کړئ (بخاري کتاب الجنایز)

په صحیح بخاري کې دجابربن عبدالله (رضي الله عنه) روایت دی، چې رسول الله (صلی الله علیه وسلم) داحد په شهیدانو دجنازي لمونځ ونکړ، خو دسیرونور ټول علماء په دې اتفاق لري چې داحد په شهیدانو یې جنازې لمونځ وکړه، نور ګڼ روایتونه هم ددي تاید کوي، "حافظ الدین علاء الدین مغلطائي" پخپل سیرت کې په دي اړه اجماع نقل کړیده، چې دایې دتفصیل ځای ندی

ځینو کسانو غوښتل خپل شهیدان مدینې ته یوسي، خو رسول الله (صلی الله علیه وسلم) هغوی منع کړل، اوحکم یې وکړ، چې هرځای شیهدان شوي، هم هلته یې دفن کړئ (ابن هشام ۲ټوک ۹۱مخ)

# بررسی نقش تزکیه در ساختار شخصیت انسان

عبدالواحد جهید

تزکیه نفس ،عبارت از پاک ساختن آن از امراض وآفات معنوی وآراسته ساختن آن به صفات محموده و پسندیده است .تزکیه نفس در کامیابی دنیا وآخرت انسانها نقش به سزایی دارد ، انسانهای پاک نفس همیشه درزنده گی دارای اعتماد به نفس، متکی به خود ،پابند به ارزشهای انسانی، به دوراز فحشا و منکرات می باشند وانسانهای دیگر درجامعه برآنها اعتماد نموده مصدرخیروصلاح بوده میتوانند.

روشها و اسالیب تزکیه نفس را که دین مقدس اسلام تعیین نموده است عبارت اند ازادای فرایض، ذکر وتلاوت قرآن، ترک معاصی، عدم ریا دراعمال، محاسبه نفس، دعا کردن، همنشینی با صالحان ، پیامد های تزکیه نفس.

تزکیه نفس مسؤولیت سنگینی است که همواره مربیان و مصلحین بیشتر ازدیگران به آن نیاز مند هستند.اولین کسانیکه این وظیفه سنگین را بر دوش گرفته، پیامبران خدا بوده‌اند ،نفسهای خود را به وسیله دین خدا به کامل‌ترین شیوه تزکیه داده وظیفه تزکیه نفوس دیگران را بدوش کشیده اند. الله متعال یکی ازاهداف مبعوث شدن پیامبران را تزکیه نفوس انسانی خوانده است، چنانچه فرموده است:«لَقَدْ مَنَّ اللهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولاً مِنْ أَنْفُسِهِمْ يَتْلُوعَلَيهِمْ آياتِهِ وَيزَكِّيهِمْ وَيعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَإِنْ كَانُوا مِنْ قَبْلُ لَفِي ضَلالٍ مُبِينٍ»آل عمران:١٦٤. یقیناً الله متعال بر مؤمنان منّت نهاد ، آنگاه که در میانشان پیغمبری از جنس خودشان برانگیخت که برآنان آیات او را می‌خواند وایشان را پاکیزه می‌داشت وبرایشان کتاب وحکمت می‌آموخت، هر چند که پیش از آن در گمراهی آشکاری بودند.

**تزکیه** ، درلغت به معنای پاکی، رشد و افزایش است. به همین خاطر الله متعال سهم قابل اخراج از ثروت را که بر مال فرد مسلمان واجب گردیده، زکات نامیده است. چون سبب رشد مال وافزایش آن و تزکیه و تطهیر پرداخت کننده می باشد.

**تزکیه دراصطلاح**: پاک ساختن نفس از تمام اوصاف وآلوده گی های معنوی وتقویت آن به زیادت اوصاف حمیده و پسندیده است. استاد سعید حوی گفته است: تزکیه نفس، عبارت از پاک ساختن آن از امراض وآفات

معنوی وآراسته ساختن آن به صفات محموده وپسندیده است.پس تزکیه عبارت ازتطهیر وتخلق است.

امام ابو الحسن الندوی گفته است:آن علمی که به تزکیه نفس انسانی و مزین شدن آن به اخلاق وفضایل حمیده وپاک شدن آن از رذایل اخلاقی می پردازد وانسان را به سوی ایمان کامل دعوت می کند وازوی می خواهد که خودش را به اخلاق پیامبران آراسته نموده وازآنها اطاعت نماید آن را علم تزکیه ، احسان و فقه الباطن می نامیم.

تزکیه نفس، درکامیابی دنیا وآخرت انسانها نقش به سزایی دارد. انسانهای پاک نفس درزنده گی همیشه دارای اعتماد به نفس، متکی به خود ،پابند به ارزشهای انسانی، به دورازفحشاء ومنکرات می باشند ، در جامعه انسانهای دیگربرآنها اعتماد نموده مصدرخیر وصلاح بوده میتوانند.بعد از وفات، روح خوشبو داشته مورد توجه وستایش ملایکه الله قرار می گیرند. پیامبر صلی الله علیه وسلم فرموده است:« بنده مؤمن هنگام خارج شدن روح از بدن بوی خوشی ازآن بلند میشود که همانند بهترین مسکها وعطرها است. هرگاه روح مذکور توسط ملائکه به جایگاه مخصوص برده شود ،حین عبور دستههایی از ملائکه سؤال میکنند این روح پاک و مطهر کیست؟ گفته میشود که روح فلان پسر فلان است. با بهترین اسمهایی که نزد صاحبش محبوب بوده، و راصدا میزنند ؛امّا ازارواح پلید وآلوده یی که صاحبانشان دردنیا آنها را پلید وآلوده به گناه و معصیت نمودهاند ، بوی متعفن بلند میشود و فرشتهگانی که برای قبض روح آنها حضور پیدا می کنند ، از بدی بو و گندیده گی اذیت می شوند و هنگام عبور، برای رفتن به جایگاه خودش، ملائکه مسیر عبور را هم اذیت مینمایند»۱. درروز قیامت چهره های کسانیکه نفس های شان راتزکیه نکرده اند ،سیاه می باشد. الله متعال فرموده است:«وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ تَرَى الَّذِينَ كَذَبُوا عَلَى اللَّهِ وُجُوهُهُمْ مُسْوَدَّةٌ» زمر۶۰.

درروز قیامت می بینی کسانی را که برالله متعال دروغ بسته اند در حالیکه چهره های شان سیاه است.

تزکیة نفس از طریق پاک کردن نفس از فسادی که در نفوس، نفوذ می کنند و پرورش آن باحسنات ونیکیها ، انجام می گیرد.این کارهم با انجام امورخیرو پسندیده و خودداری از زشتیها ومنکرات وایمان به خداوند تحقق پیدا می کند. نفس تزکیه یافته یی که خود را موافق با قانون خدا پاک نموده است، نفس طیبه یی است که دارای صفات پسندیده و شایسته اجرو ثواب آخرت میباشد.درقرآن عظیم الشان در مقابلِ «تزکیه«، »تدسیه» به کار برده میشود ومراد ازآن آلوده گی نفس، پلیدی و فساد آن به سبب گناه ومعصیت است.فلاح و رستگاری انسان، درگرو تزکیه نفس، گرفتاری واسارت او دراثر تدسیه نفس میباشد.۲ چنانچه الله متعال فرموده است:«قَدْ أَفْلَحَ مَنْ زَكَّاهَا وَقَدْ خَابَ مَنْ دَسَّاهَا»الشمس۹-۱۰

رستگارو کامیاب گردید کسیکه نفس خویش را پاکیزه کرد.نومید و ناکام گردید

کسیکه نفس خویش را دفن خاک کرد( به تزکیه آن نپرداخت).

به همین دلیل کلمه تزکیه و مشتقات آن (۵۲) باردر قرآنکریم، چه درسوره‌های مکی و چه در سوره‌های مدنی تکرار گردیده است.همه آنها هم بیانگر دو نکته مهم است: پاکی از آلوده گی و آماده‌شدن برای رشد و نموّ در مسیر تعالی وکمال چون بنده گی که فلسفه خلقت است، بدون تزکیه ممکن و مقدور نمی‌باشد.

تزکیه نفس به دوقسم است:تخلیه: پاک کردن نفس ازاخلاق رذیله ، مانند: شرک و ریا ، عجب وتکبر ، بغض وحسد ، بخل، وغضب وحرص به دنیا ونعمت های زود گذرآن . تحلیه (آراستن): آراستن ومزین نمودن نفس به مکارم الاخلاق، مانند: توحید وإخلاص، صبروتوکل ،إنابه ، توبه و شکر، خوف ورجاء، حسن خلق درتعامل بامردم، أمربه معروف ونهی ازمنکر و رساندن خیر به انسانیت در حد و اندازه توان بشری.۳

**وسایل تزکیه نفس**

انسان در گذشته و درحال کوشیده تاروشهایی را برای اصلاح و تربیت نفس وضع نماید. روش فلاسفه وتلاش بوداییها ودیگران در این راستا چیزی را برای بشریت ثابت نکرده که قابل ذکر باشد.آنچه درروانشناسی جدید به عنوان برنامه برای شناخت واصلاح نفوس انسانی تدوین گردیده است، چیزی بیشترازمجموعه افکار ونظریاتی که با هم درگیر و درنزاع هستند ، نیست، روش عملی که دقیقاً انسان را به تزکیه نفس برساند ، در آنها وجود ندارد.

این هم به خاطری است که ازحقیقت روح ونفس انسانی ایشان آگاهی ندارند ، پس چگونه می توانند ،برای اصلاح وتزکیه آن برنامه بسازند. اما دین مقدس اسلام، روشهای علمی تزکیه را برای انسانها بارز و برجسته ساخته است، نصوص صریح آیات قرآنی واحادیث نبوی صلی الله علیه وسلم بیانگر آن است ،اینک در ذیل به برخی ازین روشها پرداخته می شود. قبل ازاینکه به وسایل تزکیه نفس بپردازیم لازم به تذکر است، هر وسیله یی که برای تزکیه نفس به کار بسته می شود باید مشروع باشد ، به هیچ وسیله نا مشروع وخلاف هدایات قرآن وسنت ممکن نیست که انسان به تزکیه نفس برسد . استفاده ازوسایل نا مشروع زمینه آلوده گی نفس را بیشتر می سازد.

امام ابن قیم رحمة الله علیه فرموده است:تزکیه نفوس انسانی یکی از وظایف اساسی پیامبران الهی بوده است، الله متعال آنهارا برای اینکار فرستاده است، الله متعال کلید تزکیه وتداوی امراض نفسانی را در اختیار آنها قرارداده است، ایشان گاهی به شکل عملی واحیانا به گونه نظری رهنمایی های لازم را برای تزکیه نفوس انسانی توصیه کرده اند.انسانی که می خواهد نفسش رابدون درنظرداشت هدایات الهی وبدون توجه به ارشادات رهنمای معلم بشریت پیامبرصلي الله علیه وسلم تزکیه واصلاح نماید ، به مریضی می ماند که میخواهد مرضی

اش را خودش بدون رهنمایی طبیب تداوی کند ، پیامبران، طبیبان قلوب انسانیت اند ، اصلاح وتزکیه قلب انسان ها بدون رهنمایی های آنها ممکن نیست.

**ادای فرایض**

ادای فرایض یکی از مهم ترین راه ها برای تزکیه نفوس انسانی است، این به خاطری است که انسان مخلوق الله متعال است، ازتمام راز وکیفیت های درونی وی الله متعال بیشتر وبهتر ازهمه آگاهی دارد ، آنچه به روح وروان وی مفید است، ضروریات اولیه وی را برای زیستن به عنوان یک انسان کامل خوبتر میداند .پیامبر صلی الله علیه وسلم در حدیث قدسی فرموده است:«إِنَّ الله تَعَالَى قَالَ:مَنْ عَادَى لِي وَلِيّاً ، فَقَدْ آذَنْتُهُ بِالحَرْبِ ، وَمَا تَقَرَّبَ إِلَيَّ عَبْدِي بِشَيءٍ أَحَبَّ إِلَيَّ مِمَّا افْتَرَضْتُ عَلَيهِ،وَمَا يَزَالُ عَبْدِي يَتَقَرَّبُ إِلَيَّ بِالنَّوَافِلِ حَتَّى أُحِبَّهُ ،فَإِذَا أَحْبَبْتُهُ،كُنْتُ سَمْعَهُ الَّذِي يَسْمَعُ بِهِ ، وَبَصَرَهُ الَّذِي يُبْصِرُ بِهِ،وَيَدَهُ الَّتِي يَبْطِشُ بِهَا ، وَرِجْلَهُ الَّتِي يَمْشِي بِهَا وَإِنْ سَأَلَنِي أَعْطَيْتُهُ ، وَلَئِن اسْتَعَاذَنِي لأُعِيذَنَّهُ»۲

الله متعال فرموده است:هرکه بادوست من دشمنی نماید ، با او اعلان جنگ می کنم،بنده من به چیزی به من تقرب نمی جوید که من اورادوست داشته باشم ،ازآنچیزیکه براو فرض گردانیده ام، همیشه بنده من به من تقرب می جوید به عبادتهای نفلی تا اینکه من اورا دوست داشته می باشم، من گوش او می شوم که با من می شنود ، چشم اومی شوم که با او می بیند ، دست او می شوم که بااوتصرف می کند ، پای اومیباشم که با او ره می رود ،اگرازمن چیزی بخواهد ، به او میدهم ، اگر ازمن پناه بجوید ، اورا پناه میدهم.

همچنان پیامبرصلی الله علیه وسلم فرموده است:«أَرَأَيتُمْ لَوْأَنَّ نَهْرًا بِبَابِ أَحَدِكُمْ يغْتَسِلُ مِنْهُ كُلَّ يوْمٍ خَمْسَ مَرَّاتٍ مَا تَقُولُونَ يبْقَى مِنْ دَرَنِهِ؟ قَالُوا:لاَ يبْقَى مِنْ دَرَنِهِ شَيءٌ، قَالَ: فَذَلِكَ مِثْلُ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ يمْحُو اللّٰهُ بِهِنَّ الْخَطَايا»۳

آیا اگر جوی آبی کنار خانه هر یک از شما باشد وهر روز پنج بار در آن شستشو کنید ، چرکی بر بدنتان باقی می ماند ؟گفتند: نه، فرمود:نمازهای پنجگانه هم چنین اند ، خداوند به‌وسیله‌آن، اشتباهات‌و انحرافات‌را از بین‌ می‌برد.

عبادتهای اسلامی گویا هرکدامش برای ایجاد تزکیه در نفس انسان مشروع شده اند ، چنانچه الله متعال در رابطه به زکات فرموده است،«خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِمْ بِهَا وَصَلِّ عَلَيهِمْ إِنَّ صَلَاتَكَ سَكَنٌ لَهُمْ وَاللّٰهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ» توبه ۱۰۳.

ازاموال آنان صدقه بگیرتا به وسیله آن پاک وپاکیزه شان سازی و برایشان دعا کن؛زیرادعای تو برای آنان آرامش است و خدا شنوای داناست.

مردی نزد پیامبر صلی الله علیه وسلم آمد و از سخت بودن قلب(نامهربان بودنش) شکایت کرد ، «فَقَالَ إِنْ أَرَدْتَ أَنْ يلِينَ قَلْبُكَ فَأَطْعِمِ الْمَسَاكِينَ وَامْسَحْ رَأْسَ الْيتِيمِ»٤

پیامبرصلی الله علیه وسلم برایش گفت:اگر می خواهی که قلبت نرم شود ،به مسکینها طعام ده وبرسر یتیم ها دست بکش.

ادامه دارد.....



# د مورچل دارالافتاء

## دلعنت ویلو په اړه یوه استفتاء

مفتي ابوماریه

**الاستفتاء** : هغه خلک چې په انټرنیټ کې په ځینو ټولنیزو پاڼوکې په بیلابیلو فعالیتونو بوخت دي ، دهغوئ له ډلي څخه څه مجاهدین هم دي، او د قلم په جهادي خدمت لګیا دي ، مګر په دغه مجاهدینو کې ځیني داسې کسان هم شته چې کله دیوه فاسق یا فاجر خبره ذکرکړي اوبیاخپله هم لعنتونه ورباندي وایې ، اوله نورو ملګرو څخه هم داغوښتنه کوي، چې په دغه تن لعنتونه ووایاست ، مایوه ورځ په یوه علمي مجلس کې له عالم څخه واوریدل چې له هغه کسانو پرته چې په کفر باندي مړه شوي وي ،په بل مسلمان باندي لعنت ویل نه دي جائز، که څه هم دغه کس فاسق یاظالم وي . نوداخبره ترکوم ځای پوری صحیح ده ؟ اوکه صحیح وي چې موږ ته یې له ښې تشریح او حوالو سره جواب راکړ ئ ، څکه ډیرخلګ دغه عمل صحیح او دثواب وړ ګڼي . ورور مو معاذ

**الجواب** حامدا ومصلیا وبعد: **لمړی** باید داوپېژنو چې فقهاؤ لعنت په دوومعناو سره ذکرکړی دی . لمړی : الطرد عن رحمة الله یعني دالله تعالی له رحمة څخه دتل لپاره محروم کیدل. لکه شیطان .

**دوهم** الاسقاط عن درجة الابرار . یعني دنیکانو له رتبي څخه لویدل، د عذاب مستحق کیدل ، او... دلعنة لمړۍ معنی مشهوره او دوهمه یې غیرمشهوره ده.

دلمړۍ معنی په اړه یې بیل احکام دي اودوروستۍ معنی په اړه یې بیل دي.

۱- هغه خلک چې په همدغه معنی سره لعنة ورباندي ویل کیږي دوه ډوله دي یو داچې دغه لعنة ویل نه دي ورباندي جائز هغه په لاندي ډول دي، مثلا:

- په یوه مسلمان باندي لعنة ویل نه دي جائز ، که څه هم دغه مسلمان فاسق ،ظالم اوفاجر انسان وي . لکه یزید وغیره .

- په یوه داسې معین شخص باندي لعنت ویل" چې په کفرسره یې مرګ په یقیني ډول نه وي معلوم " نه دی جائز. لکه کارمل، تره کی، اوداسې نور...

- همداراز په یوه ژوندي اومعلوم کافر باندي هم لعنة ویل جائز نه دي .

- همداراز په یوه حیوان اوجمادباندي هم لعنة ویل جائز نه دي.

هغه خلک چې په لمړۍ معنی سره لعنت ویل ورباندی ویل جائز دي په لاندي ډول دي ، مثلا :

-په شیطان باندي لعنة ویل جائز بلکه دثواب عمل دی .

-په هغه کافرانو باندي لعنة ویل جائز دي چې معلوم نه وي که څه هم ژوندي وي، خوچې په هرفرد باندي لعنة ویل مقصود نه وي .ددي مثال لکه لعنة الله علی الکافرین . لعنة الله علی الیهود والنصاری، یاداچې په کافرانو دي لعنة وي ...

- په هغه معلوم کافراومرتدباندي لعنة ویل چې په یقیني ډول یې مرګ په کفرباندي واقع شوی وي ، لکه ابوجهل ابولهب ،مندیلا ،اوداسې نور ..

- دکفارو په هغه صفاتو چې په عمومي ډول دوئورباندي موصوف وي ، لکه لعنة الله علی الظالمین ،لعنة الله علی الکاذبین اوداسې نور ....... ځکه په زیاترو ځایونو کې له ظالمینو اوکاذبینو څخه مشرکین یامرتدین مراد وي .

اوپه دوهمه معنی سره لعنة ویل په لاندي کسانو باندي جائز دی :ځکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم خپله په دغوکسانو باندي لعنة ویلی دی . یعني

١. په مجسمو جوړونکو اومصورینو . یعني هغه چې دساه کښو مجسمي یاتصویرونه جوړوي .

٢. هغه میرمني چې دخاوندله کوره دهغه له اجازي پرته وځي ،اوکوم شرعي عذر هم نه لري .

٣. هغه خلک چې په لارو یادخلکو دناستو په ځایو یاګودرونو کې قضاء حاجت کوي .

٤. ناکح الید یعني هغه کس چې په خپل لاس باندي دشهوت انقضاء کوي .

٥. په سودخور باندي .

٦. په خال وهونکي اولګونکي میرمني باندي

٧. هغه میرمني چې دشرعي عذراوپردي پرته په هدیروکې ګرځي ، یاپه زیارتونوکې جزع فزع کوي یانور غیرشرعي اعمال سرته رسوي.

٨. هغه خلک چې په قبرونو باندي شمعي لګوي ،یاپه قبرونو باندي مساجدجوړوي.

٩. دځمکو په غصب کونکي.

١٠. چې دنورو دځمکو حدود متغیرکوي

١١. هغه چې دخلکو دلمانځه امامت کوي اوخلک ورباندي خوښ نه وي ، یعني په جبر اوزورسره دخلکو دلمانځه امامت کوي .

١٢. له مطلقوښځوسره یوازې دتحلیل په نیت نکاح کوي .

١٣. هغه خلک چې رشوت اخلي یایې ورکوي .

١٤. څوک چې دحددنفاذ مخه نیسي .

١٥. هغه خلک چې نور ځوروي .

اوداسې نور ...............

**الحاصل**: په مذکوره صورتونو کې په فاسقانو یانورو دغه ډول اشخاصو باندي په دوهمه معنی سره لعنة ویل جائز دي ، اوپه لمړۍ معنی سره لعنة ویل ورباندي جائز نه دي، خوداچې دلعنة لمړۍ معنی مشهوره اودوهمه غیرمشهوره ده اوعام خلک له لعنة څخه لمړۍ معنی مراد وي ، نوځکه باید په عمومي ډول له دغه ډول لعنة ویلو څخه په داسې مواردو کې ډډه وشي .

قال الله تعالي : إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ أُولَئِكَ عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ اللهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ

(١٦١) خَـالِدِينَ فِيهَـا لَا يُخَفَّـفُ عَـنْهُمُ الْعَـذَابُ وَلَا هُـمْ يُنْظَرُونَ .١٦٢ البقرة

وفي الحديث : عن عبدِ الله بن عمرو، قال: لَعَـنَ رسولُ الله - صلَّى الله عليه وسـلم - الـراشِيَ والمُرْتَشِي- رواه ابوداود

فى النبراس شرح شرح العقائـد ص\٣٣٢ وثالثهـا اللعنة على شخص لم يعلم موته على الكفـر وهولا يجـوز سواء كان حيا اوميتا وكان بحسب الظاهر مؤمنـا اوكافـرا لجواز ان يوفق الله سبحانه للكافر الاسلام .

في ردالمحتار ١٥\ ٤٩ جديـد : كتـاب الطـلاق ، باب الرجعة ، مطلب في حكم لعن العصاة

أقـول: حقيقـة اللعـن المشـهورة هي الطـرد عـن الرحمة، وهي لا تكون إلا لكافر، ولذا لم تجز على معين لم يعلم موتـه على الكفـر بـدليل وإن كان فاسـقا متهـورا كيزيد على المعتمد، بخلاف نحو إبليس وأبي جهل فيجـوز وبخلاف غير المعين كالظـالمين والكاذبـين فيجـوز أيضـا لأن المراد جنس الظالمين وفيهم من يموت كافرا، فيكـون اللعن لبيان أن هذا الوصف وصف الكافرين للتنفير عنه والتحذير منه لا لقصد اللعن على كل فرد من هذا الجنس لأن لعن الواحد المعين كهذا الظالم لا يجـوز فكيـف كل فرد من أفراد الظالمين، وإذا كان المراد الجنس لما قلنا مـن التنفير والتحذير لا يلزم أن تكون تلك المعصية حرامـا من الكبائر، خلافا لمـن أنـاط اللعـن بالكبـائر فإنـه ورد اللعن في غيرها كلعن المصـورين، ومـن أم قومـا وهـم له كارهون، ومن سل سخيمته: أي تغوط على الطريق والمرأة السـلتاء أي الـتي لا تخضـب يـدها والمرهـاء أي الـتي لا تكتحل، والمرأة إذا خرجت من دارها بغـير إذن زوجهـا، وناكح اليد، وزائرات القبور، ومن جلس وسـط الحلقـة وغير ذلك، ومنه ما هنا، هذا ما ظهـر لي، لكـن يشـكل على منع لعن المعين مشروعية اللعان وفيـه لعـن معـين، نعم يجاب بأنه معلق على تقدير كونه كاذبا لكنه لا يخرج عن لعن معين تأمل. ثم رأيت في لعان القهستاني قـال: اللعـن في الأصل الطرد. وشرعا في حق الكفار الإبعاد مـن رحمـة الله تعالى وفي حق المؤمنين الإسقاط عن درجة الأبرار. اهـ

.... وعن هذا قيل إن المراد باللعن في مثـل ذلـك الطرد عن منازل الأبرار لا عن رحمة العزيز الغفار.

وفي الموسـوعة الفقهيـة ٣٥\ ٢٧٢ - ٢٧٤ لا خـلاف بـين الفقهـاء في أن الدعاء على المسـلم المصـون باللعن حرام. أما المسلم الفاسق المعين فقد اختلفت فيه أقوال الفقهاء: فالمـذهب عنـد الحنفيـة والشـافعية وهـو المذهب عند الحنابلة وهو قول ابن العربي مـن المالكيـة، أنه لا يجوز لعنه لما ورد عن النبي صلى الله عليـه وسـلم أنه أتى بشارب خمر مرارا فقـال بعـض مـن حضره: اللَّهُمَّ العنه، ما أكثر ما يؤتى بـه فقـال النـبي صـلى الله عليـه وسلم: فوالله ما علمت أنه يحب الله ورسوله ...

٤ - ويجـوز لعـن غـير المعينـين مـن الكفـار والمسلمين العصاة لما ورد: أن رسول الله صلى الله عليـه وسلم: لعن الواصـلة والمستوصـلة ، ولعـن آكـل الربـا ، ولعـن المصور ، وقال: لعن الله من غير منار الأرض ،..

ولعـن اليهـود والنصـارى، لأن المـراد: الجـنس لا الأفراد وفيهم من يموت كافرا. ويكون اللعـن لبيـان أن تلك الأوصاف: للتنفير عنه، والتحـذير منـه، لا لقصـد اللعن على كل فرد من هـذه الأجنـاس، لأن لعـن الواحـد المعين كهذا الظالم لا يجوز، فكيف كل فرد من أفراد هذه

الأجناس، وإذا كان المراد الجنس لما قلنا من التنفير والتحذير، لا يلزم أن تكون تلك المعاصي من الكبائر خلافا لمن ناط اللعن بالكبائر، لأنه ورد اللعن في غيرها.

٥ - أما الكافر المعين فإن كان حيا فقد ذهب الحنفية والشافعية والحنابلة في المذهب إلى أنه لا يجوز لعنه لأن حاله عند الوفاة لا تعلم وقد شرط الله تعالى في إطلاق اللعنة الوفاة على الكفر وذلك في قوله تعالى: {إن الذين كفروا وماتوا وهم كفار أولئك عليهم لعنة الله والملائكة والناس أجمعين} (٢) ، ولأنا لا ندري ما يختم به لهذا الكافر.

أما لعن الكفار جملة من غير تعيين وكذلك من مات منهم على الكفر فلا خلاف في أنه يجوز لعنهم، وقد نص الشافعية على أنه لا يجوز لعن الحيوان والجماد ..

**اوددغه حكم ځيني برخي له دې لاندينيوتفاسيرو اوفتاواو څخه هم اخستل شوي .**

روح المعاني ٧٢\٢٦ معارف القرآن ٤١٠\١ وطبع اخرى ١٦٢\٢ وجامع الفتاوى ١٧٨\٢ وفتاوى فريديه ١٤٦\١ اردو

**دمجاهدينو دسفراواقامت په اړه ديوې استفتاء جواب**

**الاستفتاء** : محترم مفتي صاحب ! موږ مجاهدين چې دتشكيل نوبت ته ځو، نو هلته دري ياڅلور مياشتي تيروو ، خوپه داسې ترتيب چې كله تريوي مياشتي پوري هلته په يوه كلي كې دپاتي كيدو اراده لر و ؛ مگر معلومه نه وي چې هروخت امريكايان ياېې مزدوران سيمي باندي چاپي ياحملي شروع كړي، نوبياله دې امله چې خلكوته زيان ونه رسيږي موږ له دې كلي ياسيمې څخه ځو ،نوپه دي صورت كې به زموږ لمونځونه څرنگه وي ؟ يعني قصر اوكه اتمام ؟

**الجواب** حامدا ومصليا وبعد: په ذكرشوي صورت كې كه دمجاهدينو په همدغه يوه كلي كې د١٥ شپوورځودتيرولو يقين ياظن غالب وي ، يعني ددوئ يقين ياظن غالب وي چې موږ په دغه كلي كې پنځلس ياله هغه نه زياتي ورځې له دښمن څخه په امن كې تيرولى شو، نوبيا اتمام فرض دى ، يعني پوره لمونځ به كوي ، اوكه چېري يې يقين ياغالب گمان داوي چې پنځلس ورځې دلته نشو تيرولى بلكه هروقت ددښمن دچاپو ويره وي نوبيا قصر واجب دى يعني څلور ركعتېز لمونځ به دوه ركعته كوي ،

لمافتح القدير١١\٢ وطبع اخرى ٣٦\٢ (قوله: فلم تكن دار إقامة) ومجرد نية الإقامة لا تتم علة في ثبوت حكم الإقامة كما في المفازة ..... من جهة أنها ليست بموضع إقامة قبل الفتح؛ لأنهم بين أن يهزموا فيقروا أو يهزموا فيفروا، فحالتهم هذه مبطلة عزيمتهم؛ لأنهم مع تلك العزيمة موطنون على أنهم إن هزموا قبل تمام الخمسة عشر وهو أمر مجوز لم يقيموا، وهذا معنى قيام التردد في الإقامة فلم تقطع النية عليها، ولا بد في تحقق حقيقة النية من قطع القصد، وإن كانت الشوكة لهم؛ الخ ومثله في تبيين الحقائق ٢١٢\١ ط امداديه

وفي احسن الفتاوى ٨٠\۴ حاصل يه هي كه اس پر تمام ارباب فتوى متفق هين كه ايک مقام پرپندره روز ٹهرني كايقين هو تواتمام كرين ورنه قصركرين ،اسمين اختيار وعدم اختياركي كوى دخل نهين ،......اگران كوظن غالب هوكه پندره روز سي قبل رهايي يانقل مكاني متوقع نهين هي تواتمام فرض هوگا ورنه قصركرين .

والله تعالى اعلم

(نومبر)

# جنګي جنايتونه

سيد سعيد

دروان (۲۰۱۴ز) کال دنومبر دمياشتي په ۲مه نيټه دهلمندولايت دمارجې ولسوالۍ دترخه ناور په سيمه کي دروستم دپوستې اربکيان دمسجد دامام کورته ورغلي، ملا امام يې په خپل کورکي وهلی اوبيايې يوقرآن مجيد په برچو وهلی اوپه ډز وسوری - سوری کړی دی .

ددې پيښي په غبرګون کي په زرهاوو خلګودلښکرګاه دبولان په سيمه کي مظاهره وکړه اوديادي شوي پيښي دعاملينو دډېر تر ژره سزا کيدو غوښتنه يې وکړه .

دنومبرپه ۴ مه نيټه د ننګرهار ولايت دچپرهار ولسوالۍ په زغوسيمه کي نيواکګرو ځواکونو د کورنيوعسکروپه ملتيا دچاپې پرمهال سل (۱۰۰) تنه ملکي هيوادوال بنديان کړي ، کورونه يې تلاشي کړي او دوه تنه ولسي وګړي يې شهيدان کړي دي .

دنومبر په ۱۲مه دزابل ولايت د شاجوی ولسوالۍ په خان کلي کي ځايې اربکيانودخپل يوه ملګري چي طالبانووژلی ؤپه بدل کي يو شپونکی شهيدکړی دی .

دنومبر په ۱۴ مه د لغمان ولايت د قرغيو ولسوالۍ په ګمبيري سيمه کي يرغلګروعسکرودوه ماشومان شهيدان کړي او دوه نور يې ژوبل کړي دي .

دنومبر په ۱۵ مه دهلمندولايت د مارجې ولسوالۍ د سستاني دالکوزو په کلي کي داخلي عسکرويو ملکي وګړی ( عبدالغفور ) شهيد کړی دی .

دنومبر په ۱٦ مه داخلي عسکرو د کندوز په چهاردره ولسوالي کي اووه لس تنه ولسي- وګړي نيولي اوڅلور نفره يې شهيدان کړي دي ،چارواکونيول شوي او وژل شوي کسان طالبان بللي ، خو ولسي- وګړودشهيدانوجسدونه دولايت مقام ته داحتجاج په توګه راوړي وو،دوی ويل چي: وګورئ وژل شوي اونيول شوي کسان ټول ملکي وګړي دي ، نه طالبان دي او نه يې هم له مخالفينوسره اړيکي درلودې .

دنومبر په ۲۳مه دزابل ولايت د شاجوی ولسوالۍ د شبار دزيارت دپوستې عسکرو يو ملاامام (حافظ نسيم ) شهيد کړی دی .

